بشپړ او مدلل

# د اعتکاف مسئلې

د قرآن او احادیثو په رڼا کي

مؤلف

مولانا مفتي محمد رفعت «قاسمی»

پښتو ترجمه

مفتی محمد ابراهیم «خلیل»

خپرونکي

رشیدیه کتابخانه سرکي روډ کوټه

# دکتاب پيژندنه :-


دکتاب نوم : **داعتکاف مسئلي**

مؤلف : مفتی محمدرفعت «قاسمی»

پښتوترجمه : مفتی محمد ابراهيم «خليل»

تصحيح اوډيزاين : ابوخالد مولوی عبدالاحد «مجروح»

دترجمې اوکمپوزچاری : دنورالقرآن اداري دکمپوزاوترجمې څانګه

خپرونکی : رشيديه کتابخانه سرکی روډ کوټه

دچاپ ځای : لاهور

دچاپ کال : (۲۰۰۹) عيسوی

دچاپ شمير : ۱۱۰۰/ ټوکه

**دفهرس پای**

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین

ابوخالد



**دحضرت مولانا مفتی نظام الدین صاحب مد ظله رایه**

**ددارالعلوم دیوبند ددارالافتاء ناظم**

الحمد لله رب العالمین والصلوٰة والسلام علی سید المرسلین وعلی آله واصحابه اجمعین

تر نظر لاندی رساله مکمل اومدلل داعتکاف مسئلې، هم دمؤلف دمخکنیو دوو کتابو مکمل اومدلل دتراویحو مسئلې، اومکمل اومدلل دروژې مسئلې، دځانګړتیاوو اوفا ئدو په څیر ځانګړتیاوی اوفائدی لري.

هره مسئله دحوالي دعبارت سره سم وړاندی کولوسره باور اواعتماد نورزورشي. الله تعالی دی دغه رساله هم دعا مو اوخاصو په ګټه تمامه کړی اوقبوله دی کړی آمین.

**العبد نظام الدین**

**ددارالعلوم دیوبند مفتی**

**(۱۴۰۷۶۱۹ هج)**

## د مؤلف وينا

هر کال په ليدوکي راځی چي درمضان المبارک په مياشته کي په عامو مسلمانانو کي ددينې جذبو يوزبردسته جوش پيداشی ،اوددوی په عباداتو کي ځانګړی زياتوب احساسيږی،بيا په آخری عشره کي نژدی په هر مسجد کي ښا غلی معتکفان هم په نظر راځی بلکه ځای ځای مسجدونه په اعتکاف کونکيو ډک شی ،خو ډير ه دافسوس خبره ده چي داعتکاف له مهمو مسئلو دناخبرتيا له امله دډيرو وګړو اعتکاف نه صحيح کيږی، ډير ځله زيا تره اعتکاف کونکی په لومړنی ورځ خپل اعتکاف فاسد کړی اودوی په خبر هم نه وی.ددغو حالاتو په نظر کي نيولو سره بنده دخپلو مشفقو استاذانو دتوجه په فيض په اعتکاف کي روزانه رامخته کيدونکی ضروری مسئلي دفقه دسند درلودنکو کتابو له حوالو څخه په دغه رساله (مکمل اومدلل داعتکاف مسئلې) کی راغونډی کړی دی تر څو اعتکاف کونکي بزرګان اودوستان له دغو مسئلو ګټی تر لاسه کړی اوخپل اعتکاف له فاسديدو وساتي اوهغه زيات نه زيات د رحمت اوثواب باعث وګرزوی.

ربنا تقبل منا انک انت السميع العليم

محمد رفعت قاسمی ددارالعلوم ديوبندمدرس

۸ جمادی الاخری ۱۴۰۷هج –



## اعتکا ف څه دی؟

دروژی په وسيله دانسان نفسيات پر اعتدال راوړلو سره هغه دشريعت دغوښتنو تر سره کولو ور جوړکړی ؤ اوس چي کله په دی طريقه شل ورځي تيری کړی ګواکی دروحانی دوايو نصاب (کورس) بشپړ شو ، نواوس الله تعالی داوغوښتل چي زما بنده له ماپرته له ټولو مخلوقاتو څخه نامهمی اړيکی پری کړی يواځي زماپر در پريوزی،اوله ماپرته دده له هيچا سره تړاو پاتی نه شی .په روژه کي يي خپله محبوبه ميرمن يواځی په ورځ کي په پريء ا يښی وه ،کله چي بنده په دی کي بريالی شو ،نواوس يی شپه اوورځ له هغي بيل کړی داټول ګوښه توب يي دځان لپاره خاص کړ.اووی فر مايل چي خوراک،څښاک ،پر يوتل ،ويديدل ټول زما په کورکي کوه اوزما کومه يادونه چي دی ددنيا په کارونو کي دبوختيا پر مهال کوله ،اوس به هغه له ټولو جلا زما دعبادت په ځاي کي کيږی ترڅو ددنيا له ناپاکه ماحول يولورته شي په زړه اودماغ دی زمامينه ښه ننوزی ،اوستا دزړه پر دنيا اوس حکومت وی نويواځی ديوه اوقهارالله تعالی وی.(رمضان کيا هی ؛ص ۱۴۰)

دمعتکف مثال دهغه سړی په څير دی چي دچاپر دروازه پريوزی اووائي چي تر څو زما درخواست قبول نشي نه ځم.

که په ريښتيا همدغه حال وی نوله سخت څخه د سخت زړه انسان به هم زړه نرم شي ،اودالله تعالی سخی ذات خو دبخښنی لپاره

چي ودنياته شاکړی دالله "پر دروازه پريوزی نو دهغه په نازول
کيدوکي څه شک کيدای شي اوالله تعالی چي دچا اکرام وکړي
،نو دهغه دډکو خزانو بيان څوک کولای شي.
داغه رنګه معتکف هر وخت په عبادت مشغول وی چي سړی پ
ويديدو وينبيدو هر وخت په عبادت کی شميرل کيږی اوو الله"ت
نژدي والی دی ،په حديث کي راغلی دی چي :کوم څوک يولاس
زما پر لور نژدی شي زه هغه ته دوه لاسه ورنژدي کيږم اوڅوک چي
زما وطرفته (سوکه هم )تګ کوی زه دهغه پر لور په منډه ورځم
،داغه رنګه په دی کي دالله "په کورکي کيدل دي اوسخی کوربه
تل وکورته دراتلونکيو اکرام کوی ،داغه رنګه دالله ﷻ په قلعه
کی محفوظيږی چي دښمن هلته ورتلاي نشي.داغه رنګه په
اعتکاف کي خوتګ راتګ اودلته هلته کارونه هم نه وی څکه
نوله عبادت اوسخی بادار له ياده سواکومه بله بوختيا هم نشي
پاتي. (فضائل رمضان ص۵۱ )

## داعتکاف ثواب

که يواځي دالله" درضا لپاره اعتکاف وکړل شي نو ډير لوړ اوستر
شان درلودونکی عبادت دي :رسول الله صلی الله عليه وسلم
داعتکاف ډير زيات اهتمام کاوي: امام زهری رحمة الله عليه وايي چي
:رسول الله صلی الله عليه وسلم به کله ډير کارونه کول اوکله به يي
پريښودل خو له کوم وخت څخه يې چي مدينی ته تشريف راوړي
دژوند ون تر آخره هيڅکله يې هم (درمضان دآخرني لسوورځو )



اعتکاف نه پريښود خوحيرانتيا ده چي خلک په پوره ډول ددی
پابندی نه کوی...
داعتکاف کونکيو په اړونددرسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاددي
:هو يعکف الذنوب ويجری له من الحسنات کعامل الحسنات کلها
(رواه ابن ماجة عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما )
اعتکاف کونکي له ګناهونو ساتل کيږی اودهغه لپاره (بيله
کولو )هم دومره نيکياني ليکل کيږی څومره چي دکونکيو لپاره
ليکل کيږی : تشريح :په دی حديث کي داعتکاف دوی غټی
مهمي ګټی بيان شوی دي :(۱)يوه خودا چي انسان له ګناهونو
ژغورل کيږی ،ښکاره خبره ده چي انسان چي هر ځای کښيني له هر
ډول خلکو سره مخا مخ کيږی اوبيا دټولی نړی کيسي اوپريکړی
مخته راځی په کومو کي چي دروغ ، رښتيا ،غيبت ،بهتان ،او
نور هرو مرو وی په ځان بچ کولو کي هم انسان دخپل ماحول له تأ
ثيراتو ډير لږ په حفاظت کي کيږی .خوپه مسجد کي په کښينستو
انسان له دغو ټولو جګړو ساتل کيږي(۲) دوهمه غټه دګټی خبره
دا په لاس راغله چي دډير و نيکيانو ثواب بيله کولو هم په مفته
کی ورکول کيږی :حقيقت دادي چي الله تعالی دورکړی لپاره
بهاني پلټي چي کومه بهانه په لاس راشي نوخپل بنده نازوم ،
معلوميږی داسی چي خدای ﷻ خودورکړی پر يکړه کړی ده
اماپه يوه بهانه يي راکول غواړي: اعتکاف کونکي خو ډير نيک
کارونه لکه (په جنازه کي برخه اخيستل ،دناروغ پوښتنه اونور

(صرف په دي وجه نه کوي چي ده په مسجد کي هستوګنه پیل
کړې ده ، نوچیری بنده دافکر ونکړي چي اعتکاف می وکړ په
سلګو نو عبادتونو اوله غوره کارونو پاته شوم ، ځکه الله تعالی
بیله کولو دغه ټول ثوابونه دده لپاره مقرر کړل، څومره ښه موقع ده
،کیدلا ی شي چې که سړی اعتکاف نه کولای نودومره نیکیانی
یې هم نه شوی کولای، خواوس داعتکاف په برکت وده ته دغه
ثواب ورکول کیږي

(۳)اعتکاف عشر فی رمضان کحجتین وعمرتین..

رواه البیهقی ،السراج المنیر ج ۱ ص ۲۲۰الترغیب ج۲ص۱۴۹ )

ژباړه : درمضان دآخری لسوورځو داعتکاف ثواب ددوو حجو
اودووعمرو برابردی.

تشریح:(دقدردانو اړتیاده) ،که په کوم کارکي ددنیا دومره ګټه
خوخه کوی ددی لسمه برخه هم مونږته په نظر راغلی واي نومونږ
به ددی ولاس ته کولو لپاره وینه اوخوله یو کړی واي ،خوددینی
کارونو زمونږ په زړونوکي هیڅ قدرهم نشته ،ځکه نوله غتی څخه
غتی ګټي په اوریدوهم مونږ سرنه خلاصوو ...دیوه ورده حدیث
شریف لنډیز دی چي کوم څوک دالله جل جلاله لپاره دیوی ورځي
اعتکاف کوی الله تعالی دوزخ له ده څخه دځمکی اوآسمان دواټن
په اندازه دري چنده لیری کوی یعني له دوزخ سره ګواکی دده هیڅ
تړاو نه پاته کیږي ،خو په مونږ کي به څومره خلک وی دکومو په
زړونوکي چي ددغو ټولو ګټو اجر اوثواب په اوریدوداعتکاف



شوق اوجذبه راپیدا شي ،اوهغه ددی لپاره په راتلونکي روژه کي
چمتووي لږ ترلږه ددی ثواب دلاس ته کولو ډیره هوسا طریقه داده
چي پنځه وخته چي دلمانځه لپاره ومسجدته ورننوزو
نوداعتکاف نیت وکړو؟ ترڅو چي په مسجدکي یوو .که یومخ
چپ هم کښینو بیا هم داعتکاف ثواب راکول کیږي اوکه قرآن
کریم یا تسبیحات اونورهم وایو نوددی ثواب جلاراکول کیږي

(رمضان کیاهي ،ص۱۴۴)(دعینی شرح بخاری ج ۵ ص ۳۷۱ په حواله اوسنن ابن ماجة ص ۱۲۸ )

## دا عتکا ف روح

حافظ ابن قیم رحمة الله علیه وائي چي داعتکاف مقصد اودهغه روح و
زړه ته دالله له ذات سره تړون ورکول دی چي وټولوته شا کړی
دهغه سره یو ځای شي اودټولو بوختیا وپه بدل له هغه پاک ذات
سره مشغول شی اودهغه دغیر له لوری اړیکی پری کړي په داسی
ډول په هغه اخته شی چي دخیالاتواوفکر ونودټولو پر ځای دهغه
دپاک ذکر اودهغه د مینی کیفیت شی .. تردی چي دمخلوق سره
دمینی پر ځای دالله سره محبت پیدا شي چي دغه محبت به دقبر په
وحشت کي کارورکوی په هغه ورځ به دالله جل جلاله له پاک ذات پرته
نه کوم مینه وال وی اونه کوم زړه ور خوشحاله کونکی :که دزړه
مینه له هغه سره راغلی وی نوڅومره په خوند به وخت تیریږي.

(فضائل رمضان ص۵۱ )

## دا عتکا ف حکمتو نه اوفا ئد ې

په اعتکاف کي چي دشرعی حکم کیدو له کبله هر څومره ګټي او

حکمتونه وی خوکم دی. دلته یوڅو لنډ حکمتونه اوفائدی لیکل کیږی.

(۱) که یواځی داسی ویل شوی وای چي یومخ پر یوه طرف پرداسی ځای لس ورځي تیری کړه چیری چي مارغه وزرهم نشی رپولای نوښکاره خبره ده چي ګوښه توب او تنهائی خوزیات په برخه کیږی خودداسي ګوښه توب څه فائده چي انسان دانسان پر ځای یو غرني حیوان جوړشي اوله ناوړوصحبتونو څخه دځان ژغورني په شوق له ښو صحبتونو څخه هم بی برخی شی ځکه الله تعالی د اعتکاف لپاره مسجد وټاکی ولي چي بیهوده اوغلط ډول خلک خومسجد ته نه راځي دکومو ناسته چي تاوانی وی :تل له لمونځ ګذارو،پر هیزګار و اوتهجد کونکو خلکوسره مخامخ کیدل دی، له هغوی سره ناسته ولاړه خبری اتری کیږی دکومومجلسونو چي بي پایانه ګټور اوپه کار راتلونکی دی ،ځکه نو همدغه وجه ده چي دداسی مسجد ټاکم یي وکړ چیری چي پنځه وخته لمونځ کیږی ولی چي که په داسی وران مسجد کی اعتکاف کیدائ چي دانسان تر لیری لیری نښه نه وای نوتر ګټی به یي تاوان ډیر وای نه به په جماعت سره لمونځ وای اونه به دنیکوخلکو مجلسونه په نصیب وای.

(۲) په اعتکاف کی انسان بی فکره شی اوزړه ددنیا له تفکر اتوخالی شي ،دانسان توجه له خدایه لیری کونکی شیان خواکه هغه شیان په انسان کي دننه وی یا دباندی .چي کله انسان په



خلوت کي اوسیږی نوسوکه سوکه ټول ختمیږی اوزړه به په پوره ډول ددنیا له خیا لاتو خالي اودیوه الله ولورته به متوجه شی اودي به دعبادتو نو دانوارو اوبرکتونوتر لاسه کولو وړووګرزي(۳) دخلکو سره په ناسته پاسته اودکاروبارپه بوختیا ووکي چي له انسان څخه کومی کوچنی غتي ډیری ګناهوی کیږی په اعتکاف کي له هغوی څخه په حفاظت کی وي (۴) الله تعالی فرمایي: چي کوم څوک وماته یولاس رانږدی کیږی زه وهغه ته دوه لاسه ورنږدی کیږم اوڅوک چي زماپر لورتګ کوی راځی زه په منډه ورځم هغه خپلوم ،اواعتکاف کونکی خودخپل کوراوټاټوبي په پر یښودلو یواځي نږدی نه بلکه دخدای کورته راشی دهغه ودرته پریوزی.نواوس تاسو اندازه وکړی چي الله تعالی به څومره نږدی اوپر ده به څومره مهربان وی(۵) درانه خلک وخپل کورته د راتلونکیومیلمنو عزت اوقدرکوی نودسخیانو سخي اوورکو نکوته ورکونکي به خپل کورته د راتلونکي میلمه آیا هیڅ عزت اواکرام ونکړی(۶)شیطان دانسان پخوانی دښمن دئ خوکله چي انسان دخدای په کورکی وی نوګواکي په ټینګه قلعه کي دی ،شیطان اوس دده هیڅ تاوان نشی کولای (۷) ملائکي هروخت دخدای په عبادت اودهغه په یادکي وی اوډملائکو سره مشابهت پیداکوی اوملائکي خوو الله جل جلاله ته ډیری نږدی دی ځکه دابنده هم دالله" قرب اودهغه نږدیکت حاصلوی (۸)نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چي تر څو انسان دلمانځه په انتظاروی وهغه

ته دلمانځه ثواب ورکول کیږی ،په اعتکاف کي داثواب هم ولاس ته کیږی (۹) ترڅو چي سړی په اعتکاف کي وی وهغه ته په تسلسل سره دعبادت ثواب ورکول کیږی خواکه دي پټه خوله ناست وی یا ویده وی یاپه خپل کوم بل کار مشغول وی.(۱۰)د اعتکاف کونکی هره دقیقه په عبادت کي وی نودقدردشپی ولاس ته کولو هم له دی غوره کومه بله طریقه نشته ولي چي هرکله چي دقدر شپه راشي دي به په هرحال په عبادت کي وی.

(رمضان کیاهي ،ص۱۴۲) دمشکوة شریف لومړی ټوک مخ ۲۸په حواله

## دا عتکاف شرطو نه

(۱) په کوم مسجد کي چي پنځه وخته لمونځ په جماعت سره کیږی په هغه کي دی اعتکاف وکړل شی (۲) داعتکاف په نیت په مسجد کي پاتي کیدل ،نوبیله قصد اوارادی پاته کیدلوته اعتکاف نه ویل کیږی .کله چي دنیت صحیح کیدو لپاره دنیت کوونکي اسلام اوعقل شرط دی .ځکه نو دعقل اوداسلام شرط دنیت په ضمن کي راغلی (۳)له حیض اونفاس( میاشتني ناروغي اودماشوم زیږولو له وینی ) خالي اوپاکیدل اودجنابت له ناپاکي هم پاکیدل ،بلوغ یا نارینه والی داعتکاف لپاره شرط نه دی ،دنابالغه مګر پوه اومیرمني اعتکاف صحیح دی.

(علم الفقه دریمه برخه مخ ۱۴۷اودبهشتي زیور یوولسمه حصه ص۱۰۷ دشرح تنویر لومړی ټوک مخ۱۵۵ په حواله)

## دا عتکاف قسمو نه

اعتکاف درې ډوله دی:(۱) واجب (۲) مؤکد سنت( ۳) مستحب



## واجب اعتکاف

(۱) که چانذر منلی وی نذر خوانا معلق وی لکه چي کوم څوک بیله کوم شرط داعتکاف نذر وکړی چي زه به دخدای لپاره دری ورځي اعتکاف کوم ،یا معلق وی لکه چي کوم شخص داسی شرط وکړی چي که زما فلاني کاروشو نوزه به دالله ﷻ لپاره دوی ورځي اعتکاف کوم. نودااعتکاف واجب شو اوله دی سره پخپله روژه هم واجب شوه ولي چي داعتکاف دوجوب لپاره روژه شرط ده ، کله چي څوک اعتکاف کوی نوروژه به هم هرومرو نیسی بلکه که داسی نیت هم وکړی چي زه به روژه نه نیسم بیا هم دروژی نیول ورباندی لازمیږی .همداوجه ده که کوم څوک دشپی داعتکاف نیت وکړی نوهغه لغودی ولی چي شپه دروژی محل نه ده ، هو که دشپی اوورځي دواړو نیت وکړی یایواځی دځو ورځو نوبیا په ضمن کی شپه هم ورسره داخلیږی اودشپی اعتکاف کول به هم ضروری وی اوکه یواځی دیوی ورځی داعتکاف نذر وکړی نوبیا شپه په ضمن کي ورسره نه راځي :په ځانګړی توګه دروژی د اعتکاف لپاره دروژونیول ضروری نه دی خواکه په هر غرض روژه ونیوله شي داعتکاف لپاره کفایت کوی دمثال په ډول یو سړی دروژی په میاشت کي داعتکاف نذر وکړی نودرمضان روژه دده داعتکاف لپاره هم کفایت کوی :هو ددی روژی واجب کیدل ضروری دی ،نفلی روژی ددي لپاره کفایت نه کوی مثلا یوسړی نفلی روژه ونیسي اوتر هغه وروسته ده هم دغي ورځي داعتکاف

نذر وکړی نوصحیح نه دی .هو که کوم سړی درمضان دټولی میاشتي داعتکاف نذر وکړی اواتفاقا په روژه کي ونه کړل شی نوپه کومه بله میاشت کي ددی په بدل کولو سره دده نذر پوره کیږی خوپر لپسي روژی نیول اوپه هغوی کي اعتکاف کول به ضروري وی.

بهشتي زیور یوولسمه برخه مخ ۱۰۷ دشامی ج ۲ ص ۱۷۷ او د شرح تنویر ج ۱ ص ۱۵۲ په حواله :(۲) سنت اعتکاف په دی کي خوروژه هسی هم وی ځکه نو ددی لپاره دروژی وشرط لګولو ته اړتیا نشته .یعني دروژي دمیاشتي دآخرنیو لسو ورځو اعتکاف مؤکد سنت دي دادشلمي ورځي مازدیګر دلمر لویدو مخکي پیل کیږي اوداختر میاشت خواکه د ۲۹ وی اوکه د ۳۰ وی دمیاشتی دښکاره کیدوسره سم پای ته رسیږی ،دغه اعتکاف رسول الله صلی الله علیه وسلم تل په ډیره پابندي سره کړی دي .په صحیح احادیثو کي نقل شوی دی :دغه اعتکاف مؤکد سنت کفایی دی یعنی په محله یا په کلي کي دځینو وګړو په کولو دټولو غاړي خلاصیږي اوکه هیڅوک یې هم ونکړی نوپر ټولو به ددی وبال اوګناه وی. (بهشتی زیور حصه ۱۱ ص ۱۰۷ دشامی ج ۲ ص ۱۷۸ په حواله )

( ۳ ) مستحب اعتکاف په مستحب اعتکاف کي روژه نیول شرط نه دی ،اونه ددی لپاره کوم ټاکلی مقدار شته یوه دقیقه بلکي تردی په لږ وخت کي هم کیدلای شی.

(بهشتی زیور حصه ۱۱ ص ۱۰۸ دشامی ج ۲ ص ۱۷۷ په حواله)



د مستحب اعتکاف په اړه حضرت شیخ الحدیث لیکي :دامام محمد رحمة الله علیه په نزد دلږوخت لپاره هم اعتکاف جائز دی اوپر همدی فتوی ده ځکه نو دهر سړی لپاره مناسب دی چي کله ومسجد ته ورننوزی داعتکاف نیت دی کوی چي په دی وخت په لمانځه اونورو بوخت وی داعتکاف ثواب هم ورسره وی .ما خپل پلار محترم نورالله مرقده ددی اهتمام کونکی لیدلی ؤ چي کله به مسجد ته ولاړی نودښی پښي په دننه ور داخلو لو سره سمدستي به یې داعتکاف نیت کاوي اوډیر ځله به وخادمانو ته دوربنودلو په غرض په لوړ آواز هم نیت کاوي. ( فضائل رمضان ص ۵۰ )

## داعتکا ف تر ټولو غوره ځای

تر ټولو افضل هغه اعتکاف دی کوم چي په مسجد حرام یعنی کعبه شریفه کي وکړل شی تر دی وروسته دنبوی مسجد مقام دی بیا دبیت المقدس مسجد اوتر هغه وروسته دهغه جامع مسجد درجه ده چیری چي دجماعت بندوبست وی که په جامع مسجدکي دجماعت نظام نه وی نو دمحلی مسجد غوره دي تر دی وروسته هغه مسجددی په کوم کي چي زیات جماعت کیږی ، دمیر منو لپاره دخپل کور په مسجد کي ( چیری چي لمونځ کوی ) اعتکاف کول بهتردی. (علم الفقه حصه ۳ ص ۴۲)

## درسول الله صلی الله علیه وسلم اعتکاف

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم شریف عادت داؤ چي درمضان په آخری عشره کي به یی اعتکاف کاوي :کله چي به دروژی آخرنی

لس ورځې راغلې نوده ده مبارک ﷺ لپاره په په مسجد کې یوځای ځانګړی شو اوهلته به دنبی صلی الله علیه وسلم لپاره کومه پرده دڅټایی اونورو ولګول شوه یابه کومه کوچنی خیمه ودرول شوه اوپه شلم تاریخ چې کله به نبی صلی الله علیه وسلم دسهار لمونځ وکړ هلته به ورغلی اوداختر دمیاشتی په لیدو به بهرته راوتی.پر دی مهال به نبی صلی الله علیه وسلم خپل خوراک څښاک هم هلته کاوی ،اوهم هلته به ویده کیدې دده مبارک له بی بی ګانو څخه چې به دکومی یوی دده دزیارت کولوقصدؤ هغه به هم هلته ورتله ،اوتر لږ ناستی وروسته به بیرته ستنیده ،بیله کومی سختی اړتیا دې مبارک له هغه ځایه دباندی نه راوتی.یو ځل دده مبارک دسر پاکولو قصدؤ اوام المؤ منین عائشة رضی الله تعالی عنها دحیض په ورځو کې وه نوده مبارک (خپل سر مبارک له دربچې رابهر کړاوام المؤمنین په مینوولو وریاک کړی.

( صحیح بخاری اونور ) علم الفقه حصه ۳ ص ۴۵)

## په پیسو په بل اعتکاف کول

پوښتنه:دخه شی په ورکولو په بل اعتکاف کول څنګه دی؟

ځواب: په اجرت اعتکاف کول جائز نه دی .ولی چې دعباداتو لپاره مزدوری ورکول اواخیستل دواړه ناجائز دی لکه. چې دردالمحتار فصل فی الجنائز والا جارات کې په تفصیل سره ددی څرګندونه وجودلری هوکه بی داجرت له تاکلو اعتکاف ورباندی وکړی اود اعتکاف په کولو په هغه ځای دخه ورکولو رواج هم نه



وی نوځه ورکول روادی بلکه داپه أمر بالمعروف کې داخلیږی.

(فتاوی دارلعلوم ج۲ ص۵۱۲ دد رمحتار باب صلوة الجنائز بحث غسل ج۱ص۸۰۴په حواله)

## که دیوه کلی سړی په بل کلی کې اعتکاف وکړی سنت دکوم کلی اداکیږی

پوښتنه:که دیوه کلی سړی بل کلی ته ولاړشی اعتکاف وکړی نوله کفایه سنت څخه دکومی سیمې خلکو غاړی خلاصیږی؟

ځواب: دفقهاؤ له عبارت څخه معلومیږی چې دهغه کلی اوښار دوګړو غاړی خلاصیږی چیری چې معتکف اعتکاف کړی وی ، ولی چې اعتکاف له مشهور قول سره سم کفایه سنت دی چې دهر کلی له خلکو سره تړاولری .نولکه څنګه چې داعتکاف په پر ییښودلو هغه خلک ګنهګاره کیږی همدارنګه په ا داکولو هم د هغوی غاړی خلاصیږی.

(وفی جامع الرموز وقیل لسنة علی الکفایة حتی لوترک فی بلدة لاساؤ الخ ص۱۶۴)

ښکاره خبره ده چې په دی عبادت کې دګناه تړاؤ دښاروالو داعتکاف سره نه دی ورکول شوی بلکه په ټولو ښاروکې داعتکاف په نه کیدو ښاروالاوو ته ګنهګار ویل شوی دی .چې ورځنی ظاهردی چې که پردې سړی هم معتکف شی نو په داسی صورت کې په ټول ښار کې داعتکاف نه کیدل نه صادقیږی؟له کوم څخه چې دالا زمیږی چې دښار داوسیدونکو له دی سنته غاړی خلا صیږی.

(فتاوی دارالعلوم ج۲ص۵۱۲)

## ایا دغټ کلی په اعتکاف دکوچنی کلی داوسیدونکو غاړی خلاصیږی ؟

پوښتنه:دغټ کلی په مسجد کي په اعتکاف کولو دکوچنی کلی چي دغټ کلی سره یو مخ نښتی وی دخلکو ذمه له دغه کفایه سنت څخه فارغیږی او کنه ؟

ځواب:دغټ کلی په مسجد کي په اعتکاف کولو دکوچنی کلی د خلکو له دغه کفایه سنت څخه غاړی نه خلاصیږی..

(فتاوی دارالعلوم ج ۲ ص۵۰۱ ددرمختار باب الاعتکاف ج۱ص۱۷۷په حواله)

## ایا اعتکاف په هره محله کي کفایی سنت دي؟

پوښتنه:درمضان المبارک په آخرنی لسوورځوکي اعتکاف سنت کفایي دي،آیا دکفایي مطلب دادي چي یواځی په یوه مسجد کي په اعتکاف کولو دټولو ښاروالاووله لوری سنت اداکیږی ،آیا د یوی محلی له طرفه اداکیږی ،یاکه داچي په هر هر مسجد کي اعتکاف ضروری دي؟

ځواب:ددی په اړوندمی کومه صریح جزئیه ونه موندله ؟البته په شامی کي داعتکاف سنت دتراویحو قائمولو نظیر ښودلی دی اودتراویحو په باب کي ددریو قولونو تر نقلولو وروسته یې تر جیح ودیته ورکړی ده چی دهری محلی په مسجد کي دتراویحو په قائمولو کفایه سنت اداکیږی له دی څخه ثابتیږی چي داعتکاف هم همدغه حکم دي.

(احسن الفتاوی ج۴ص۴۹۹دردالمحتار ج۱ص۲۲۰په حواله)



## درمضان داخری عشري اعتکاف واجب دي که نفل؟

دروژی دمیاشتی دآخرنیو لسوورځواعتکاف مؤکد سنت کفایه دی اوداقسم له واجب اونفل اعتکاف څخه بیل دی.

( فتاوی دارالعلوم ج۷ص۵۰۷دردالمحتار باب الاعتکاف ج۲ص۱۷۷ په حواله )

## سنت اعتکاف له کوم وخت څخه ترکوم وخت پوری وی ؟

دروژی دمیاشتي په شلمه دلمر ترلویدولړ مخته مسنون اعتکاف پیل کیږی اودروژی پر ۲۹یا ۳۰ یعني کله چي داختر میاشت ولیدل شي تر هغه وخته پوری وی .که دلمر تر لویدولړ مخته میاشت ولیدل شوه نودلمر ترلویدو په اعتکاف کي کښینستل ضروری دی.

( بهشتی زیور حصه ۳ص۲۲دشامی ج۲ص۱۷۹په حواله)

## له عشري څخه دکم اعتکاف کوونکی حکم

پوښتنه :که کوم څوک دجسم دناتوانی له کبله دپوره آخرنیو لسو ورځو اعتکاف نشی کولاي اودري یا پنځه ورځی وروسته یعني د۲۱اود۳۰ په منځ کي اعتکاف وکړی نودسنت څه ثواب ورکول کیږی که له رمضان پرته دنورو اعتکافونو په ډول یواځي نفلی بلل کیږی ؟

ځواب :سنت اعتکاف دآخری عشری دقیدسره سنت دئ ،اوکله چي داقید عملی نشونو نه سنت دی اونه دسنت کوم جز ګرځی یواځي نفلی دی.

( امدادالفتاوی نوی ترتیب ج۲ص۱۵۴

**په يويشتمه شپه په اعتكاف كې كښېنستلو څه حكم دى؟**

پوښتنه:كوم څوك چي په يوويشتمه شپه تر پيښلمي كولو وروسته د سهار تر سپيدو لږ مخته داعتكاف په نيت ومسجدته ورننوزي دهغه اعتكاف صحيح كيږي اوكنه ؟

ځواب: سنت دادى چي په شلمه دلمر تر لويدو مخكى مخكى مسجدته ورننوزي خوتر دى وروسته چي هروخت هم نيت وكړي ومسجدته ورداخل شي بيا هم صحيح دى خودپوره عشري فضيلت په دى صورت كي نه حاصليږي :نبي كريم صلى الله عليه وسلم دبشپړى عشرى ( درمضان دآخرنيو لسوورځو ) اعتكاف كړى دى كوم چي دشلمى له ماښام څخه بشپړ كيداى شي .

( فتاوى دارالعلوم ج ۶ص۵۰۸دردالمحتارج ۲ص۱۷۷باب الاعتكاف په حواله)

**ترشلمى شپى وروسته په اعتكاف كي دكښېنستلو څه حكم دى؟**

پوښتنه:كه معتكف واعتكاف ته دشلمى دشپى دڅه برخى ترتير يدلو وروسته ورداخل شي نوآيا دآخرى عشرى سنت اداكيږى كنه

ځواب .په دى صورت كي دآخري عشرى پوره اعتكاف ونه شواوسنت پوره نه شو. ( فتاوى دارالعلوم ج ۶ص۵۰۷ردالمحتارج۲ص۱۷۷)

**دعذرپه وجه اعتكاف نه كول څنګه دى؟**

پوښتنه:يو مسافر مولوى صاحب له دوو كلو څخه دلته دى ،د اعتكاف ډير فضيلتونه بيانوى اماپخپله په اعتكاف كى نه كښيني اوداعذروابى چي زما په كوركى ديوځاى اوسيدلو لپاره څوك نشته زما خپلوان اوعزيزان نشته .زماوكورته نژدى يو



خالي ډګردى ميرمن اوماشومان مى ډير داريږى اوكله ناكله په كوركى ډبرى راځى نښلى ،دمولوى صاحب داعذر دقبلولو وړدى اوكنه ؟

ځواب :دبيان شويو عذرونو له كبله اعتكاف پريښودل ګناه نه ده ،ولي چي درمضان دآخرنيو لسوورځو اعتكاف كفايه سنت دى.

( فتاوى دارالعلوم ج۶ص۵۰۷دردالمحتارباب الاعتكاف ج۲ص۱۷۷په حواله)..

**ايا دروژى نيولو توان نه درلودونكي سنت اعتكاف صحيح كيږي**

پوښتنه:درمضان دآخرى عشرى داعتكاف كولو مي خيال دى خود روژى نيولو توان نه لرم نوبي له روژه نيولو اعتكاف صحيح دى كنه؟

ځواب: دمسنون اعتكاف لپاره روژه شرط ده ځكه نو بيله روژى اعتكاف نفلى دى:مسنون اعتكاف نه دى.

(فتاوى رحيميه ج۳ص۱۱۰)

**دنا بالغه ما شوم اعتكاف كول څنګه دى**

پوښتنه:نابا لغ ماشوم درمضان په آخرى عشره كي اعتكاف كولاى شي كنه ؟دلته يو نا بالغ هلك په اعتكاف كي كښېنستلي دى كه جا ئزنه وى نوهغه راولاړكړو؟

ځواب:نابالغ هلك كه پوه وى ،لمونځ پيژني ،اوپه صحيح طريقه يي كوى نواعتكاف كيدلاى شي ،نفلى ګرځي مسنون اعتكاف نه ګرځي :كه ناپوه دى نونه شي كښېنستلاى .ولي چي دمسجد دبي ادبي انديښنه ده.

(فتاوى رحيميه ج۵ص۲۰۲)

## دچا د بدن چي بد بوئ ځي دهغه اعتکاف څنګه دی؟

پوښتنه:یو سړی مورزاده دپوزی ناروغه دی دکومی په وجه چي بد بوئي راځي ،په علاج اوتداوی هیڅ ګټه ترلاس نه شوه نودداسي سړي په اعتکاف کي کښینستل څنګه دی(۲ ) داغه رنګه داسړی دپنځو لمونځولپاره مسجدته ولاړشی اوکنه ،اوکه نورلمونځ کونکی دده په بدبوئي زغمولو خوشحاله وی بلکه دده په نه حاضریدو په تکلیف کیږی نوآیا بیا هم دمسجد داحترام په خیال تګ په کار دی اوکنه؟

ځواب:په حدیث شریف کي دی کوم څوک چي له دی بوي جني درختي خوراک وکړی هغه دی زمونږ مسجد ته نژدی نه راځي ځکه چي په هغه شي سره ملا ئکه وو ته تکلیف رسیږی په کوم شئ چي انسان په تکلیف کیږی .ځکه نو دچاد بدن دکومی برخی په بدبوئي چي خلکوته تکلیف وی نودهغه لپاره مسجدته راتګ نه دی پکار اونه په اعتکاف کي کښینستل پکاردی :په وسیله محمدیه شرح طریقه محمدیه کي دی چي دکوم چاله بدن څخه داسي ناخوښه بدبوئ راځی دکومی په وجه چي خلک تنګیږی نودهغه ایستل پکاردی.

(۲) داحکم هغه وخت دی کله چي بدبوئي دناخوښی اوتنګولو حدته رسیدلی وی.

خوکه دوستان بې زغمی یاورسره عادی شوی وی نوبیا دا حکم نه ی ،خوبیا هم دده لپاره ومسجدته دراتګه ځان ساتل پکاردی



ولي چي مسجد دملا ئکو دحاضریدو ځای دی هغوی اونور خلک له دی څخه تنګیږی ،خوکه بدبوئي کمه وی ،تکلیف جنه ،اود ناخوښي تر ځایه نه وی رسیدلی نودپنځو لمنځونو لپاره دی بدبویي لیری کونکی عطر اونور ولګوی اوولاړدی شي.

(فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۱۲)

## ایا میر من اعتکا ف کو لا ی شي

میرمن دی په خپل کورکی چیری چي یې دلمونځ کولو ځاي دی هم هلته اعتکاف وکړی اوپه هغه ځای کي اعتکاف کول ددی په هکله داسی دی لکه چي دنارینه لپاره په جامع مسجدکي اعتکاف کول.له هغه ځایه دی له ضروری اړتیاؤ پرته په بل وخت کي نه راوزی اودښځی لپاره داهم جائز دی چي پخپل کورکي دلمانځه له ځایه څخه سوا بل ځاي اعتکاف وکړی اوکه ددی په کورکي دلما نځه لپاره کوم ځانګړی ځای نشته نو یو ځای دی د لمانځه لپاره وټاکي هم هلته دی اعتکاف وکړی.

(فتاوی عالمګیری ج۲ص۳۰)

په فضائل رمضان کي دی چي :دمیرمني دخپل کور په مسجد کي اعتکاف کول پکاردی که په کورکي کوم ځای دمسجد په نوم متعین نه وی نوکوم کونج دی ددی لپاره ځانګړی کړی : دمیرمنو لپاره اعتکاف دنرو په نسبت زیات هوسا دی ،په کورکي په ناسته دکورکار هم په نجونو کوی او مفت ثواب هم ولاس ته کوی :خوله دی سره مېرمني له دی سنت څخه ګواکي یومخي بی برخي دی.

(فضائل رمضان ص۵۱)

## ایا د میرمنې لپاره دخاوند اجازه ضروري ده

دښځې که میړه وي نودهغه بې اجازې دې اعتکاف نه کوي ،او همدغه حکم دمریيې اومینځې دې چې دبادار بې اجازې دې اعتکاف نه کوي :اوکه خاوند ومیرمن ته اجازه وکړه بیا وروسته بې دئ دمنع کولو اختیار نلري که میر منې داعتکاف نذر ومنئ نوخاوندته دااختیار شته چې دامنع کړي اوهمدغه حکم دمریې اومینځې ومالک ته دې ،اوکله چې میرمن دخاوند له نکاح دباندې اومریې آزاد شي نوهغه وخت دې قضاء راوړي .

( فتاوی عالمگیری اردوپاکستانی ج۲ص۳۱)

## که د اعتکا ف پر مها ل طلا ق شي نو څه حکم دې:

که میرمن په اعتکاف کې وه اوپه دې حالت کې ودې ته طلاق ورکول شو نودې ته پکاردې چې دپلارکره ولاړه شي اوپر همدغه اعتکاف دې بناء وکړي هلته دې معتکفه شي .( هدایه ج۲ص۳۲)

## میرمنې ته که داعتکاف په حالت کې حیض راشي نوڅه حکم دې؟

پوښتنه:میرمنې ته که داعتکاف پر مهال حیض یعنې میاشتنې ناروغي راشي نودابه ددومره ورځو قضاء راوړي اوکنه ؟

ځواب:په کومه ورځ چې حیض پیل شوپواځې دهغې ورځې قضاء واجب ده. ( احسن الفتاوی ج۴ص۵۰۲)

ددې مسئلې وضاحت دبهشتي زیور په متن اوحاشیه کې په دې ډول دې چې که حیض یا نفاس ورته راشي نواعتکاف دې پریږدي ... کې اعتکاف صحیح نه دی .خو تر پا کیدو وروسته خاص



دهغې ورځې داعتکاف قضاء ضروري ده .بیاکه قضاء دروژې په میا شته کې راوړي نودرمضان روژه ورته کفایت کوي اوکه د روژې تر میا شتې وروسته قضاء راوړي نو هغه ورځ روژه نیول ضروري دي. ( بهشتی زیورج۳ص۲۲)

## دنبی صلی الله علیه وسلم دبی بی گا نو اعتکا ف

له حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی چې رسو ل الله صلی الله علیه وسلم به درمضان په آخری عشره کې اعتکاف کاوه تر مرګه دده مبارک دغه معمول ؤ : تر ده وروسته دده بی بی ګانو په پا بندی سره اعتکاف کاوه تشریح:بی بی ګانو به پخپلو حجرو کې اعتکاف کاوی،اودمیرمنو لپاره داعتکاف ځای د دوی دکورهم هغه ځای کوم چې دوی دلمانځه لپاره ټاکلی وی ،که په کور کې کوم ځانګړی ځای مقرر نه وی نوداعتکاف کونکیو میر منو لپاره دځای انتخا بول پکاردی. (معارف الحدیث ج۴ص۱۱۹)

## داعتکاف لپاره دځا درونو بندو بست کول ځنګه دي

پوښتنه:داعتکاف لپاره دمسجد په یوه کو نج کې دپر دې بندو بست کول ځنګه دی ؟یعنی دپردې شتون سنت دی که بدعت ؟

ځواب: داعتکاف کونکی لپاره دمسجد په یوه کونج کې دخادر ونو اونورو حجره جوړول مستحب دی اوپه دې کې دستر اونورو ساتنه ده له دې پرته نوری ګټې هم دی :دنبي صلی الله علیه وسلم لپاره دچتا بې حجره جوړیدل ثابت دی ، بدعت نه دی ،خو معتکف دی دغه خبری په پام کی ونیسی چی تر ضرورت ...یات

ځای دی نه نیسی ،دلمونځ کونکو دستو نزو سبب دی نه جوړیږی دصفونو په سمیدوکي دی خلل نه وی نبی ﷺ دبوري اوپه ترکي خیمه کي اعتکاف کړی وو ،له دی څخه معلومیږی چي له څادر اونورو څخه حجره(کوټه)جوړول له نبی صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دی:ځکه ودی ته بدعت نه شو ویلای.

(فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۵دمرقاة شرح مشکوة ج۴ص۳۲۹په حواله)

### داعتکاف لپاره د مسجد څادرو نه او برق کارو ل څنګه د ی

پوښتنه:معتکفان داعتکاف لپاره دمسجد څادرونه کاروی اوپه هره خیمه کي یو یو بلب(ګروپ) وی،دداسی خیمی جوړولو شرعی څه حکم ده ، اومعتکفان دورځي په مسجد کي ویدیږی او په شپه کي په مسجد کي په خبرو بوخت وی؟ مهرباني وکړی په دی اړه هم راته ولیکي؟

ځواب :داعتکاف لپاره خیمه جوړول مستحب دی که چا په مسجد کي څادرونه ایښي وي نو څه پروانه لری، که د مسجد په پیسو رانیول شوی دی نودهغوی دخیمی لپاره کارول صحیح نه دی ، خپل ځانی څادرونه کارول پکاردی (۲) بجلي برق دمسجد له قانون سره سم چي تر څو بلیږی کارول صحیح دی تر ټاکل شوی وخت وروسته بلول صحیح نه دی ،ځکه نو څومره زیات مصرف چي شوی وی معتکفان دی په ګډون اداکړی دمسجد حق د ی پر ځانو نه پریږدی:

۳) معتکف ضروری خبری کولای شی ،بی ضرورته دنیوی



خبری که څه هم دګناه نه وی ،بیا هم په مسجد کي صحیح نه دی په حدیث کي دی چي کله کوم څوک په مسجد کي ددنیا خبری پیل کړی نو ملائکي وایی اسکت یاولی الله یعنی ای دالله ﷻ دوسته چپ شه ،اوکه چپ نشی اوده خبرې رواني وساتلي نو ملا ئکي وایی اسکت یا بغیض الله یعنی ای دخدای ﷻ دښمنه چپ شه... تردی وروسته هم که هغه ددنیا خبری کوی نووایی اسکت لعنة الله علیک یعنی پر تادی دخدای لعنت وی چپ شه.

(کتاب المدخل ج۳ص۵۵)

بیله اړتیا دی یوځای نه راغونډیږی ،معتکفان دعبادت لپاره دخپل رب دراضی کولو لپاره اودثواب حاصلولو لپاره کښیني ،که ددنیا په خبرو مشغول وی نوداجر اوثواب پر ځای به دملائکو لعنت اوبد دعا( ښیرا ) له ځانو سره یوسی ځکه نو پر معتکفانو لازمه ده چي یو ځاي دی نه جمع کیږی په خپله خپله خیمه کي دی دقرآن په تلاوت ،دعا ،نفلونو ،ذکر ،درودشریف او نورو بوخت وی اوکوم دنیوی کارونه چي له مسجد څخه بهر دنا معتکفانو لپاره صحیح نه دی هغه په مسجد کي اوبیا د معتکف لپاره څنګه رواکیدلای شي. ( فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۴)

### ایا معتکف په مسجد کي په چارپایی ویدیدلای شی؟

پوښتنه:معتکف دخپل اعتکاف په ځاي کی ( په خیمه کي ) پر پلنګ ویدیدلاي شی اوکنه ؟

ځواب:معتكف په مسجد كې پر كټ ويد پدلاى شي.

(فتاوى رحيميه ج۵ص۲۰۷ دمجموعه فتاوى ج۲ص۱۸ په حواله)

## ايا معتكف په مسجد كې پر طبيعت ګرزيد لاى شي

پوښتنه:په مسجد كي دطبيعت سمولو لپاره ګرځيدل (چهل قدمى كول )دضرورت له امله جائز دي اوكنه ؟

ځواب :دعادت په خلاف په مسجدكي داسي عمل كول چي د مسجدورنه وى جائز نه دى اوداطبيعت سمول هم همداسي دئ ځكه منع كيږي خو دمعتكف لپاره دضرورت په خاطر دارتيا په اندازه اجازه شته كله چي دطبيعت سمولو ډول دمسجد داحترام په خلاف نه وى . (فتاوى رحيميه ج۵ص۲۰۷ دامداد الفتاوى ج۴ص۱۷په حواله )

## د هوا خارجولو لپاره ايا معتكف له مسجده وتلاى شي

معتكف دباد پريكولو لپاره له مسجد څخه دباندى تلاي شي كه دده لپاره په مسجد كي هوا خارجول صحيح دى ؟

ځواب: صحيح دادى: چي دهوا خارجولو لپاره دى بهرته ولاړشي ( فتاوى رحيميه ج۵ص۲۱۲ )په امدادالفتاوى كي دامسئله په دى ډول ده چي: زيات صحيح قول دادي چي له مسجد څخه وتل پكاردى ،اوروايت دمطلق كيدو په وجه ومعتكف اونامعتكف دواړوته شامل دى.يعنى په مسجد كي هوا ايستل نه دى پكار كه معتكف وى كه بل څوك. ( امدادالفتاوى ج۲ص۱۵۳)

## ايا نذر شوى اعتكاف له قضائى روژي سره صحيح كيږى ؟

پوښتنه:نذر شوى اعتكاف درمضان دمياشتي دقضائى روژو په



ضمن كي اداكيدلائ شي اوكنه ؟

ځواب:كه چا په معلوم رمضان كي داعتكاف كولو نذر منلى وى نو هغه درمضان دروژو سره اداكولاي شي ،كه په روژه كي اعتكاف ونكړل شو نو دهمدغه رمضان دقضائى روژو سره هم كولاي شي كني دجلا روژو سره دى اعتكاف وكړى ،په بل رمضان يا په بل واجب كي دااعتكاف نه اداكيږى.

اوكه يې دنا معلوم اعتكاف نذر منلى وى نو دهغه لپاره دى مستقلي روژى ونيسى دقضاء روژه كفا يت نه كوى.

(احسن الفتاوى ج۴ص۵۰۷ دردالمحتارج۲ص۱۴۲په حواله )

## دا عتكاف دنذر طريقه

كه چا ديوي شپي داعتكاف نذوكړ ،يادكومى داسي ورځى نذر وكړى په كومه كي چي يې څه خوړلى وى نو نذرنه صحيح كيږى ،اوكه داسى وويل چي دالله ﷻ لپاره پر ما واجب دى چي زه ديوى ميا شتى اعتكاف بيله روژو وكړم نو پر ده واجب دى چي اعتكاف وكړى او كله چي دنذر داعتكاف لپاره روژه شرط ده اوداشرط هم دى چي خاص داعتكاف لپاره به روژه نيسى بلكي كه چا دروژى دميا شتى داعتكا ف نذر وكړ نو دانذر صحيح دي ،نوكه دى سرى درمضان روژي ونيولى اما اعتكاف يي ونكړ نو پر ده واجب دى چي ددى دقضاء لپاره يوه بله مياشت اعتكاف وكړى اوروژي هم ورسره ونيسى اوكه ده په كومه بله مياشت كي داعتكاف قضاء راوره نو دانذر نه اداكيږى ولي چي كومي روژي

له خپل وخت څخه قضاء شوی وی دده په ذمه واجب بالذات
مقصودی شوی ،اوکوم شئ چي دذات په اعتبار مقصود شی هغه
په بل نه اداکیږی تر دی چي که یې دکومی میاشتی داعتکاف
نذروکړ اودروژی په میاشت کي اعتکاف وکړ نو جائز نه دی اوکه
یې په اعتکاف کي روژه ماته کړه بیا یي دیوی میاشتی دروژو
قضاء سره له اعتکافه راوړه نو جا ئز دی .ځکه چي قضاء په مثل
دادا واقع شوه ، دغه رنګه که دسهار پر مهال دچا نفلي روژه وه
بیا تر څه وخت تیر یدو وروسته ده داسی وویل چي دالله "لپاره
واجب دی چي دنن دروژی اعتکاف وکړم نو دده اعتکاف نه
صحیح کیږی . ولی چي واجب اعتکاف بیله واجب روژی نه
صحیح کیږی ،اودسهار پر وخت روژه نفلی وه نو اوس واجب
نشی کیدلای.(عالمګیری پاکستاني اردو ج ٢ص٣٠)

## دا عتکا ف پر ما تیدو د قضا ء څه حکم دی

پوښتنه:که په کومه وجه اعتکاف مات شو نو دهغه قضاء واجب
ده کنه ؟

ځواب :دنفلی اعتکاف قضاء واجب نه ده ولی چي هغه له مسجد
څخه په وتلو نه ماتیږی بلکي پای ته رسی ،دمعلوم یا نا معلوم
نذر اعتکاف که مات شی نو دټولو ورځو قضاء واجب ده له نوی
سره دی هم دومره ورځی پوره کړی ولی چي په هغوی کي تتا بع (
پر لپسی والی ) لازم دی ،اودرمضان دآخری عشری په مسنون
اعتکاف کي یواځی دهغی ورځی قضا واجب ده په کومه کی چي



اعتکاف مات شو تر فا سدیدو وروسته دااعتکاف نفلی شو د
یوی ورځی قضاء خواکه په رمضان کي راوړی یا تر رمضان
وروسته له نفلي روژی سره ،دیوی ورځي په قضاء کي دشپی
اوورځي دواړو قضاء واجب ده که یوا ځي دورځی ،ددی په اړه می
کومه څرګنده جزئیه تر نظر نه ده تیره شوی ،له قاعدو داسی
معلومیږی چی اعتکاف که په ورځ کي فاسد شو نو یواځي د
ورځی قضاء واجبیږی دسهار له سپیدو دی پیل کړی دلمر تر
لویدو دی اعتکاف وکړی. اوکه په شپه کي اعتکاف فا سد شوی
دی نو دشپی اوورځی دواړو داعتکاف قضاء واجب ده دلمر تر
لویدو مخکی دی پیل کړی دوهمه ورځ دی دلمر تر لویدو
وروسته پای ته ورسوی ،اوکه یې دورځي داعتکاف نذر ومانی
نو یوا ځی دورځی اعتکاف واجب دی اوقضاء اعتکاف هم په
وجوب کي دنذر په څیر دی نودده به هم هغه حکم وی.
( احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۵۰۲ )

## دسنت اعتکاف د قضا ء څه حکم دی:

پوښتنه:درمضان المبارک دآخری عشری اعتکاف مؤ کد سنت
کفایه دی که یې دعذر په وجه مات کړ یا په هیره مات شو نوددی
قضاء شته اوکنه ؟

ځواب: په پوښتل شوي صورت کي چي دکومی ورځی اعتکاف
مات شوی دی دهغه ورځی داعتکاف قضاء سره له روژی لازمه ده
؟خو احتیا ط له اختلاف څخه دځان ساتنی لپاره که تر رمضان

وروسته لس ورځي له روژو سره قضاء راوړي نوغوره دی.

( فتاوی رحیمیه ج۳ص۱۱۰دردالمحتار ج۲ص۱۸۰ په حواله)

**د نفلی اعتکا ف په ما تولو روژه وا جبیږی او کنه**

پوښتنه:په نفلی اعتکاف کی که دسختی اړتیا له کبله یوه ورځ یوه شپه مخکی بهرته راووزی نو ددی قضاء واجبیږی او کنه ؟او که تر یوه ورځ یوه شپه زیات وخت تیر ولو وروسته دباندی را ووتی خودروژی تر میاشتی ختمیدو مخکی راغلی نو هم شرعی حکم څه دی ؟

ځواب :دنفلی اعتکاف په ماتولو قضاء نه لازمیږی خواکه تر یوه ورځ یوه شپه مخکی مات کړی وی یاتر یوه ورځ یوه شپه وروسته ځومره چي اداشو هغه صَحیح شو ..ځکه چي دروایت پر اساس دنفلی اعتکاف لږ موده یو ګړی دئ اوددی لپاره روژه هم شرط نه ده په خلاف دواجب اعتکاف چي دهغه په ماتولو قضاء لازمیږی اوروژه دهغه لپاره شرط ده.

(فتاوی دارالعلوم ج ۶ص۵۰۴ردالمحتار باب الاعتکاف ج۲ص۱۷۹)

**تر کو م مسجد لاندی چي**

**دو کانونه وی هلته داعتکاف څه حکم دی**

پوښتنه:دکومو مسجدونو دننۍ برخه خو پر پورته ځای جوړه شوی وي ،خوغولی پر دوکانو نو جوړشوی ، داخو معلومه ده چي په انګړ (غولی) کي په لمو نځ کولو دمسجد ثواب نه ورکول کیږی ؟پوښتنه داده چي کوم څوک په دننۍ برخه کي معتکف شی



دهغه لپاره دجماعت دلمونځ کولو لپاره دمسجد غولی ته راتلل( ځکه چي نن صبازیاتره وختونه لمونځ دباندی کیږی ) اعتکاف فاسدیږی او کنه ؟

ځواب:لومړی خو که دوکانونه دمسجدلپاره وقف وی نودځینو فقهی روایتونو له مخی ودغه بام ته دمسجد ویلو ګنجائش شته ،دجماعت په اړتیا کي پر دغه روایت عمل جا ئزدی اودوهم که چیری مونږ راجح قول عملی کړو چي ددی حکم دمسجدنه دي خوبیا هم دمعتکف لپاره داړتیا په خا طر وتل جائز دی ،خواکه هغه طبعی اړتیاوی یادینی ،اوجماعت موندل هم دنورو اړتیاوو په څیرله دینی اړتیا شخه دی ځکه وتل جائز دی .دریيم چي کله له مخکی شخه معلوم وی چي له ما شخه ودی ځای ته تګ غواړی نو ګواکه داستثنا ء نیت یی کړی وی اوداستثناء پر وخت وتل جا ئز دی. (امداد الفتاوی ج:۱ ص:۱۷۴)

**په کوم مسجد کي چي پنځه**

**وخته لمونځ نه کیږی هلته داعتکاف څه حکم دی**

پوښتنه: زمونږ دکلی په مسجد کي دپنځو وختو جماعت نه کیږی نوپه هغه کي اعتکاف کولای شم اوکنه ؟

ځواب :که په نورو ورځو کي جماعت نه کیږی خوداعتکاف په ورځو کي جمعه کیږی نو کفایت کوی ،اعتکاف صحیح کیږی تاسو په خوشحالی اعتکاف کولائ شی. ( فتاوی رحیمیه ج۲ص۳۹)

په احسن الفتاوی کی دامسئله داسی ده ، داعتکاف صحیح

کیدو لپاره راجح قول دادی چي په مسجد کي دجمع کیدل شرط ن
دی.ځکه نو په همدغه مسجد کي اعتکاف صحیح دی.

(احسن الفتاوی ج۴ص۵۰۷)

**دمسجدد نه شتون په صورت کي په داسی ځای کی اعتکاف کول چیری چي پنځه وخته جمع کیږی ځنګه دی؟**

پوښتنه:په یوه کلی کي مسجد نشته خو دلته په یوه کورکي پنځ وخته لمونځ په جماعت کولو انتظام شته نو په داسی کورکي اعتکاف صحیح دی اوکنه ،اوداعتکاف نه کولو په صورت دټول کلی په ذمه دمؤ کد سنت اعتکاف دادایني بوج راځی اوکنه ،ځ شکل به وی؟

ځواب:کله چي په کلی کي مسجد نشته نو په کوم کورکي چي د پنځه وخته دجمع کولو بندو بست وی هلته دی اعتکاف وکړل شی ،هیله ده چي دمؤکدسنت ثواب به درکړل شي اوکه موونه کړ نو دنه کولو بوج به وي ،خومره چي مو وس وی کول پکار دی قبلول دالله" په اختیار کي دی.یادونه :په کوم کورکي چي په جماعت لمو نځ کوی هلته دجماعت ثواب درکول کیږی خو د مسجد له ثواب څخه به بي برخي یاست ځکه دمسجد جوړولو هڅي رواني ساتی .

(فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۹)

**مسجد شهید کړل شو نو اعتکا ف چیر ی وکړل شی؟**

پوښتنه:په کلی کي مو مسجد ؤ هغه شهید کړل شو بل ځای په مدرسه کي په جمع لمو نځ کوو نو آیا هلته اعتکاف کولای شو



،او په اعتکاف کولو مؤ کد سنت اعتکاف اداکیږی ؟

ځواب: که په شهید کړل شوی مسجد کی اعتکاف شونی (ممکن ) نه وی او په کلی کي بل مسجد وی نو هلته دی اعتکاف وکړل شي :دمدرسی داعتکاف اعتبار نه کیږی ،اوکه مسجد نشته نو صحیح کیږی. (فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۹)

**معتکف په مسجد کي په ټاکلی ځای کي وی که ځای بدلولای شی**

پوښتنه:معتکف دځان لپاره په مسجد کي ځای ټاکی نو دده لپاره په دغه ځای کي اوسیدل پکار دی یاکه په مسجد کي چي چیری وغواړی هلته اوسیدلای شی ؟

ځواب :په ټول مسجد کي چي چیری وغواړی هلته دی کښیني هیڅ پروا نلری. (فتاوی دارالعلوم ج۲ص۵۰۲ درد المحتار باب الا عتکاف په حواله ج۲ص۱۸۴)

**په غصب چي کومه حصه په مسجد کي ورشامل کړل شوی وی هلته دمعتکف اوسیدل ځنګه دی**

پوښتنه:دیوه مسجد په فرش کي لږ ځای په غصب په مسجد کي ورداخل کړل شوی دی اواوس په ظاهره ټوله دمسجد فرش معلومیږی ،په دغه ځای کي بیله اړتیا دمعتکف پاتی کیدل یا داودس لپاره پر دغه ځای کښینستل جائز دی اوکنه ،که پر دی ځای په ناسته اعتکاف ماتیږی ،اوقضاء واجبیږی

ځواب: ښکاره خبره ده چي کوم ځای په غصب په مسجدکي ورداخل کړل شوی وی هغه مسجد نه وی ،داعتکاف پر مهال دمعتکف هلته تلل او کښینستل اعتکاف فاسده وی اودواجب

اعتکاف قضاء هم لازمیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۰۵ردالمحتارکتاب الاشربة ج۵ص۴۰۷ په حواله)

**دمسجد دغاړې دیوال ته دمعتکف دتګ څه حکم دی؟**

پوښتنه :- داعتکاف کونکی لپاره دمسجد څلور دیوالونه د مسجد په صحن کي داخل دی اوکنه ؟ځواب :په دی کي دمسجد دباني ونیت ته اعتبار وی که هغه دغه دیوالونه دننه بللی وی نو داخل دی کنې خارج ،اوزیاتره دابلل کیږي چي کوم دیوال دمسجد له فرش سره لګیدلی وی هغه په مسجدکي داخل وی اوهغه بل لورته دیوال وتلی وی۰(فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۰۷)

**دمسجد دڅلور دیوالي دمعتکف لپاره څه حکم دی**

پوښتنه:دمسجد په څلور دیوالی کي دننه ځای دمسجد په ځمکه کي داخل دی اوکنه ،اوبیله اړتیا دمعتکف لپاره دمسجد په انګړ یا څلور دیوالي کي کښینستل جائز دی اوکنه ؟

ځواب:دمسجد اطلاق یواځي دمسجد ددریودروازوپرکوټه اوپر فرش کیږي هغه شرعی مسجدوی ،دمعتکف لپاره تر دغه تیری کول جائز نه دی اوکه یې داسی وکړل نو اعتکاف باطلیږي.

( فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۰۸)

یادونه :کله چي اعتکاف کوی نو لو مړی دمسجد له متولی یا امام یاله بل کوم عالم څخه دامعلومه کړی چي اصل مسجد تر کومه ځایه دی ولی چي مسجدهمیشه تر ټولو دباندی دروازی پوری نه وی دمسجد څلور دیوالي بل شئ دی اووکوم ته چي په



شرع کي مسجد ویل کیږي هغه بیل شئ دی ځکه نو کومه برخه چي له مسجد څخه دباندی وی هلته داعتکاف پر مهال مه ځی.

**ایا معتکف دجمعی لپاره نژدی ښارګوټي ته تللا ی شي**

پوښتنه:که معتکف دداسی آبادی په مسجد کي اعتکاف وکړي چیری چي جمعه نه کیږي نو آیا دي دجمعی لمونځ کولو لپاره ښارګوټي یاکوم داسی نژدی ځای ته ورتلای شي چیری چي جمعه کیږي ؟

ځواب :اعتکاف په داسی مسجد کي کول غوره دی چي هلته دجمعې لمونځ کیږي .که په داسی کلی کي اعتکاف وکړل شی چي په هغه کلی کي جمعه نه کیږي نو داعتکاف کونکی لپاره بل ښار ګوټي ته چیری چي جمعه کیږي تګ جا ئز نه دی ، مقامی جامع مسجد کي دجمعی کولو لپاره تګ روادی. ( کفا یت المفتی ج۴ص۲۳۲ )

په بهشتی زیور کي لیکلی دی چي ځایي جامع مسجدته دی دجمعي دلمانځه لپاره داسی وخت ولاړشي چي تحیة المسجد اودجمعی سنتونه هلته کولای شي اوتر لمانځه وروسته دسنت کولو لپاره هم پاته کیدل جا ئز دی .ددومره وخت اندازه دهغه سړی پررایه پر ینبودل شوی ده ،که اندازه غلطه شی یعني څه مخته ورسیږي نو هیڅ پروانلری ( بهشتی زیور حصه ۱۱ ص۱۰۹ دشامی ج۲ص ۱۸۳ په حواله) که دجمعی دلمانځه لپاره مسجدته ورشي اوتر لما نځه وروسته هم هلته پاته شي او هم هلته اعتکاف پوره کړي نو هم جائز دی مګر مکروه دی. (علم الفقه ج۳ص۴۸)

## داعتکاف په حالت کي ماشومانو ته ښوونه څنګه ده

پوښتنه:دمسجد امام صاحب په مدرسه کي ښوونه کوی او ښووني تنخوا اخلی هغه درمضان المبارك په آخری عشره کي پ اعتکاف کي وماشومانوته زده کړه ورکولای شی اوکنه؟

ځواب:داعتکاف لپاره دی له مدرسی څخه رخصتی واخلی ،کـ رخصت ورنه کړل شی نو دمجبوری له کبله په مسجد کي زدکړ ورکولای شی. (فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۲)

## ایا دمعتکف سره بل څوک روژه ماتی کولای شی

پوښتنه:دمسجد امام معتکف دی له ده سره دتراویحو امام (حافظ) کوم چي معتکف نه ده ،په مسجد کي له امام صاحب سر روژه ماتولای شی اوکنه؟

ځواب :زیات احتیاط په دی کي دي چي حافظ له شرعی مسجد څخه بهر پخپله حجره اونو رو کي روژه ماته کړی.او که ومسجدته دننوتو پر مهال دنفلی اعتکاف نیت وکړی اوداسی ووایي:نویت الاعتکاف مادمت فی المسجد .نوبیا دمعتکف سره روژه ماتولای شی. (فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۳ دعالمګیری ج۲ص۲۱۵ په حواله)

## وبیت الخلاء ته دمعتکف وتل څنګه دی

که دسختی اړتیا لپاره معتکف له مسجد څخه دباندی ولاړشی نو له ضرورت څخه تر فارغیدو وروسته دی هلته نه دریږی اوتر څو چي ممکن وی په داسی ځاي کي دی خپله اړتیا تر سره کوی م چي وهغه مسجدته زیات نژدی وی دمثال په ډول تشناب ته



که ولاړ شی اودده کورلیری وی اودده دکوم انډیوال اونورو کور نژدی وی نو هلته دی ولاړشی .هو که دی پخپل کورکي عادی ؤ اوبل ځاي ته په تګ دده ضرورت نه پوره کیدي نو بیا جائز دی.
(بهشتی زیور حصه۱۱ص۱۰۹ دشامی۱ ج۲ص۱۸۰و۱۸۲ په حواله)

## که په تېښی کي څوک وی نو ایا معتکف انتظار کولای شی

پوښتنه:معتکف که دبولو حاجت پوره کولو لپاره ولاړشی اوپه بیت الخلاء کي څوک وی نو آیا له تېښی دباندی دی انتظارو کړی که سم دستی په مسجد کي خپل ځای ته ولاړشی .اوبیا څه وخت وروسته بیرته راشی ،ځینی وختونه څو څو ځله بیرته تلل پکي راځي ،څه کول پکاردی؟

ځواب:دداسی اړتیا پر مهال هم هلته بهر انتظار کول جائز دی.

## دډوډی خوړلو په غرض لاس پر یمنځو ته وتل څنګه دی

پوښتنه:آیا معتکف له مسجد څخه دباندی د ډوډی مخته او وروسته لاسونه پریمنځلاي شی ،خواکه په صابن وی یا بیله صابون اودغاښو په پوډرو ،یاټوپ یا مسواک غاښونه پاکولای شی اوکنه؟

ځواب:لاس پریمنځو ته وتل جائز نه دی.په مسجد کي دی په کوم لو ښی کي پر یمنځی ،پوډر یا مسواک اونو ر داوداسه سره کولاي شی ،یوائی دپو ډرو اونورو لپاره وتل جا ئز نه دی.

( احسن الفتاوی ج۴ص۵۰۲)

## ایا دمعتکف داوداسه لپاره وتل جائز دی

پوښتنه:آیا معتکف داعتکاف په حالت کي له مسجد څخه دباندی دفرض اونفلی لمونځونو دغه رنګه دقرآن لوستلو لپاره اودس کولای شی ؟

ځواب:که په مسجد کي دننه داودس کولو داسی ځای وی چي اوبه له مسجد څخه دباندی تویيږی نوله مسجد څخه بهرته تلل جائز نه دی ،اوکه داسی ځای نه وی،نو جائز دی .اودس خواکه دفرضی لمانځه لپاره وی یا نفلی ،یا تلاوت یاذکر لپاره دټولو همدغه حکم دی. (احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۵۰۰)

## دمعتکف لپاره دتحیة الوضؤ اوتحیة المسجد څه حکم دی

پوښتنه: معتکف چي هر کله اودس ته ولاړشی نو تحیة الوضو اوتحیة المسجد وکړی اوکنه ؟

ځواب:تحیة الوضؤ دی وکړی اوتحیة المسجد په ورځ کي یو ځل کفایت کوی. ( فتاوی رحیمیه ج۵ص۲۰۸ )

## په نفلی اعتکا ف کي دجمعي دغسل لپاره وتل څنګه دی

پوښتنه: یوه سړی درمضان المبارک دټولی میاشتی اعتکاف وکړه داعتکاف دپیل کولو پر مهال دانیت کړی ؤ چي دجمعی دمستحب غسل لپاره به وزم دمسجد په څلور دیوالي کي غسل خانه شته آیا په داسی صورت کي دلمبید لو لپاره بهرته تللاي شي ، اوکه بي نیت نه وی کړی نو تللاي شی اوکنه ؟

ځواب: درمضان دآخرنیو لسوورځو اعتکاف سنت کفایي دی په



دی کي اودنذر په اعتکاف کي له واجب غسل پرته دجمعی او نوروغسلو لپاره دوتلو اجازه نشته دلومړی اودوهمی عشری اعتکاف (که نذر نه وی منلی نو ) نفلی دی په دی کي دجمعی لپاره( یادجنازی دلمانځه لپاره یادناروغه دپوښتني لپاره) که يې دوتلو نیت کړی وی یايي نه وی کړی په وتو اعتکاف ختميږی .ودی ته فاسد یدل نه ویل کیږی ،او کله چي دوهم ځل ومسجدته ورننوزی نوله هغه وخته بیا نفلی اعتکاف پیل کیږی.

(فتاوي رحیمیه ج۵ص۲۱۰)

## ایا معتکف تر لمبېدلو وروسته ناپا کي جامي پریمنځلای شی اوله کوره ډوډی راوړلای شی

پوښتنه: ومعتکف ته جنابت (ناپاکي) وریپښه شوه دی غسل خانی ته ولاړي هلته يي ولامبل اوورسره ورسره یی هغه ناپاکي جامی هم کومی چي دجنابت پر مهال پلیتی شوی وی په هغه غسل خانه کي په چټکتیا سره پاکی کړی ،اوتر فرا غت وروسته دبیر ته را ستنیدو پر مهال يي داوبو له هغه منګي کوم چي وغسل خاني ته نژدی وولوته ډکه کړه دخپلی اړتیا لپاره بی راوړه.په دی صورت کي دنو موړی اعتکاف فاسد شو اوکنه ؟

(۲) که يي په داسی مسجد کي اعتکاف وکړ چیری چي غسل خانه نه وه بلکه نژدی تالاب وو ،اوس که معتکف پلیتی جامی وا غوندی ودی تالاب ته ورشوه شی اودلمبلو پر مهال په اوبو کي په ولاړه ولاړه دغه پلیتی جامي پاکي کړی نو دا صحیح کیږی اوکنه

(۳ ) معتکف دډوډي رارسونکی ونه موند نو آیا پخپله ورشی ډوډی راوړلای شی اوکنه ؟

ځواب: که نذر منلی واجب اعتکاف ؤ نو په هغه کي یوائی دلمبلو لپاره له مسجد څخه دوتلو اجازه ده ،جامي مینځل یا داوبو ډکولو لپاره دریدل جائز نه دی. اوپه دی صورت کي به دی دواجب اعتکاف قضاء راوړی. اوکه اعتکاف نفلی ؤ ( په دی کي درمضان دآخری عشری سنت اعتکاف هم داخل دی) نو په هغه کي دکپړو پریمنځلو اولوتي ډکولو ګنجائش شته ،په دی شرط چي له مسجد څخه وتل یوائي دغسل لپاره وی.

(۲) پورته بیان شوی حکم ددوهمي پوښتني هم بلل پکاردی.

(۳) که مسجد ته ډوډی رارسونکي هیڅوک نه وی نو دډوډی لپاره تلل اودډوډی تر رااخیستلو وروسته سمدستی بیر ته راتلل پکار دی ،ډوډی دی په مسجد کي دننه وخوړل شی دباندی دی نه خوري اوکه یې ومسجدته دډوډی رارسولو کومه وسیله وی نوبیا دی پخپله ډوډی راوړلو ته نه ځي. (کفایة المفتی ج۴ص۲۳۴)

**ایا معتکف له اعتکا ف ځاي څخه بهر ویدېد لای شی**

پوښتنه:معتکف له خپل ځای څخه ( کوم چي ټاکل کیږی) په شپه کي بل ځای ویدېدلاي شی او کنه ؟

ځواب:معتکف چي په کوم مسجد کي اعتکاف کوی په هغه ټول مسجد کي چي چیری وغواړی اوسیدلای شی اوویدېدلائی شی.

( فتاوي دارالعلوم ج۶ص۵۰۳ رد المحتار باب الاعتکاف جـ۲ صـ۱۸۴)



**دګرمی په وجه د لامبلو لپاره وتل څنګه دی**

پوښتنه:دګرمی له کبله له مسجد څخه دباندی دمعتکف غسل کول جائز دی اوکنه ؟

ځواب : جائز نه دی ،که ضرورت زیات وی نو په مسجد کي دی غټ لوښي کښیږدی په هغه کي دی کښیني ودی لامبی په داسی ډول چي په مسجد کي کارول شوی اوبه ونه لویږی یادی لاس پاک(ټوال ) لوند کړی بیادی ونښتیځي پر بدن دی ومږی ،په څو ځله داسی کولو به بدن پاک شي.

( احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۴۹۷ دردالمحتار ج۲ص۱۸۱ په حواله )

**ایا معتکف دلمبېدلو لپاره اوبه تودولاې شی**

پوښتنه:داوبو دسړوالي په وجه معتکف دغسل لپاره ( دجمعي یا جنابت) دمسجد په څلور دیوالي کي اور بل کړی اوبه ګرمولای شی اوکنه ،سړی اوبه تاوان وررسوی ؟

ځواب :معتکف دجنابت(ناپاکی) دغسل لپاره وتلاي شی دبل غسل لپاره اجازه نشته ،تودی اوبه ورکونکي که څوک نه وی نو پخپله دمسجد په احاطه کي کولای شی .شرعی اړتیاده .ځکه نو په اعتکاف کي هیڅ تاوان نه راځي. ( فتاوی رحیمیه ج۵ص۴۰)

**دبولو لپاره تلونکی معتکف غسل کولاي شی اوکنه**

پوښتنه:که معتکف دکومی شرعی یا طبعی اړتیا له امله بهر ته ووزی مثلا قضائي حاجت(متیازویابل شی) لپاره نویوائي د ګرمی په وجه یا دخیر و لیری کولو لپاره تر استنجا کولو وروسته

یا له هغه مخکې لمبیدلای شي او کنه؟

ځواب: جائز نه دی: اعتکاف فاسدیږي، خو که غسل خانه له تټي سره نژدې وه او لمبلو تر اودس زیات وخت نه اخیستی نو د حاجت تر سره کولو وروسته دغسل اجازه شته، ددې صورت د اکیدای شي چي په مسجد کي دې جامې اوباسي یوائي په لنګ کي دې ولاړ شي او تیا کي دې خلاصه کړي پر بدن دې اوبه وبیوي راودې وزي. نه دې صابون کاروي اونه دې بدن زیات مښي. په دې ډول پاکي خوبه ونشي مګر سړوالی حاصلیږي اوکه ومسجد ته په تګ تګ کي لاس پاک پر بدن کلک ومښي نو تر ډیره حده به پاکي هم وشي. (احسن الفتاوی ج۴ ص۵۰۵)

## دمجبوریت په وجه دمړي دلمبولو لپاره وتل څنګه دي

پوښتنه: معتکف له مسجد څخه دارتیا لپاره ووزي مثلا ومړي ته دغسل ورکولو لپاره څوک نه وي یا دجنازي لمونځ ورکونکي څوک نه وي نو له مسجد څخه په وتلو دده اعتکاف ماتیږي او کنه؟

ځواب: له طبعي اوشرعي اړتیا پرته دنو رو اړتیاؤ لپاره وتل اعتکاف فاسده وي مثلاً په مسؤله صورت کي دمړي دغسل یا جنازي دلمانځه لپاره یادګواهي ورکولو لپاره کله چي دامعلومه وي چي که ده ګواهي ورنکړه نو دهغه سړي حق به ووهل شي، همدارنګه دډوبیدونکي یا سوځیدونکي دژغورني په نیت ووزي نو هم اعتکاف ماتیږي خو ګنهګار کیږي نه. بلکه په دغه صورتو



کي وتل ضروري کیږي.

(فتاوی رحیمیه ج۵ ص۲۰۸ طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۴۰۸ او۴۰۹ په حواله)

## دجنازي دلمانځه لپاره وتل څنګه دي

پوښتنه: معتکف ته معلومه شوه چي جنازه راغلې ده له مسجد ه وروتي اودجنازي لمونځ یې وکړ نو آیا اعتکاف مات شو، که مات شو نو آیا ددې قضاء لازمه ده، که ده نو دڅو مره ورځو، آیا دجنازي لپاره وتل شرعي اړتیانه ده؟

ځواب: دجنازي دلمونځ کولو ځاي که له مسجد څخه دباندې وي نو اعتکاف ماتیږي اولږ تر لږه دیوې ورځي قضاء لازمیږي. که همت وي نو دپوره لسو ورځو قضاء دې راوړي په دې کي زیات احتیاط دی دجنازي دلمانځه لپاره وتل په شرعي اړتیا کي داخل نه دي. (فتاوی رحیمیه ج۵ ص۲۰۰ طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۴۰۹ په حواله)

په معارف مدنیه مخ ۹۹ کي دغه مسئله په دې ډول لیکل شوې ده علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائي: چي داحنافو مسلک دادی چي دمعتکف لپاره دناروغه پوښتنې یا دجنازي دلمانځه لپاره د اعتکاف له ځای څخه وتل جائز نه دي ولې چي دمریض پوښتنه فرض نه ده اوهمدارنګه دجنازي لمونځ فرض عین نه دی بلکي فرض کفایي دی کوم چي نو رو وکړي بیي اداکولای شي، ځکه نو معتکف ته وتل جائز نه دي.

صاحب ددرمختار وائي چي: په واجب اعتکاف کي له ضروري اړتیا پرته له اعتکاف څخه وتل حرام دي خو په نفلي اعتکاف

کي وتل جائز دی اعتکاف نه با طلیږی بلکي پای ته رسی یعنی دنفلی اعتکاف کومه ځانګړی موده نشته بلکي دلږوخت لپاره ېې هم کولا ي شی معتکف چي کله له اعتکاف څخه ووزی هغه اعتکاف پوره کیږی. (معارف مدینه قسط۱۰ ص۹۹)

**ایا په لاره کي معتکف دجنازی**
**په لمانځه کی برخه اخیستلای شي اودناروغ پوښتنه کولاي شی**

پوښتنه:معتکف دجنازی لمانځه اودمریض پوښتني ته له مسجد څخه وتلا ي شی اوکنه ،که یې له اوله دجنازی دلمانځه اودمریض دپوښتني لپاره دوتلو نیت کړی وی نو جا ئز دی اوکنه ؟

ځواب:داعتکاف په نذرکي دجنازي دلمانځه ،دمریض دپوښتني اودعلم ومجلس ته دحاضریدو لپاره دوتلو استثناء صحیح ده اووتل جائز دی په دی شرط چي دنذر په شان یي استثناء هم په ژبه کړی وی یواځي دزړه نیت کفایت نه کوی ،خو که یې په سنت اعتکاف کي دانیت وکړ نو هغه نفل کر ځي سنت نه اداکیږی .مسنون اعتکاف یواځي هغه دی چي پکي هیڅ استثناء نه وی .په هغه کي وتل فساد راولی خو بولو ته ورته اړتیا ؤ لپاره وتلو وروسته که په لاره کي ولیدل چي دجنازی لمونځ پیل کیږی نو په هغه کي بر خه اخیستلای شی .له لمانځه مخکی اوله لمانځه وروسته هلته دریدل جائز نه دي ،دغه رنګه دبولو داړتیا پوره کولو لپاره پر خپله لاره په روانه کي پر مریض پوښتنه کولای شی ،دناروغ دپوښتني اوجنازي دلمانځه لپاره له لاری



کوم پلو ته اوښتل یادریدل جائز نه دی. (احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۵۰۰)

**ایا معتکف داذان کولو لپاره تلاي شی**

پوښتنه:آیا معتکف داذان کولو لپاره داذان کولو ځای ته تللاي شي اوکنه ؟

ځواب: که داذان دکولو دځای دروازه په مسجد کي دننه وی نو هلته معتکف په هرحال هر وخت تلای شي اوکه دروازه له مسجد څخه دباندی وی نو یواځي داذان کولو په غرض تلای شی.

( احسن الفتاوی ج۲ ص۴۹۸ دردالمحتار ج۲ص۲۸۱ په حواله )

**ایا معتکف بل ځای ته دقران وراورولو لپاره تلاي شي**

پوښتنه:زید همیشه درمضان المبارک په آخرنی عشره کي اعتکاف کوی .سږ کال تازه حالت داراوړاندی شو چي له زید څخه دنواب صاحب په کورکي قرآن کریم په تراویحو کي داورولو لپاره تک غوښت غواړی ،داسي جائز دی اوکنه ؟

ځواب: که داعتکاف پر وخت دانیت وکړی چي زه به په تراویحو کي دقرآن کریم اورولو لپاره ځم نو داجائزدی.

( فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۱۲ دعالمګیری مصری کتاب الصوم باب السابع ج۱ص۱۹۹ په حواله )

**ایا معتکف په مسجد کي دمریض په کتلو نسخه ورلیکلاي شی**

پوښتنه:معتکف په مسجد کي دناروغه په کتلو یا دحال په اوریدلو نسخه لیکلاي شی اوکنه ،داغه رنګه که معتکف دطبعي اړتیا لپاره دباندی ولاړشي نو بهر دیو مریض پر پوښتنه دواوړ ښودلاي شی کنه ؟

ځواب:معتکف په مسجد کي دناروغه په کتلو اوحال اوريدلو نسخه ليکلاي شي اوعلا ج کولاي شي .اومعتکف که دطبعي اړتيالپاره له مسجد څخه دباندي ولاړشي اوکوم مريض خپل حال ورته ووايي اوددواپوښتنه ورځيني وکړي نو ورښودل جائز دي.

(فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۰۲ دردالمحتار باب الاعتکاف ج۲ص۱۸۴، ص۱۸۵ په حواله)

**دمقدمي دنيټي لپاره دمعتکف وتل څنګه دي**

پوښتنه:يو سړی معتکف دی اوپه آخري عشره کي دده دپوی مقدمي تاريخ دی په دغه ورځ په محکمه(کچاری) کي دده حاضری ضروری ده په مسؤله صورت کي دغه معتکف د مجبوريت له کبله ومحاکمي ته حاضری ورکولای شی او کنه ؟

ځواب:دمقدمی لپاره که ووزی نو دده سنت مؤ کده اعتکاف فاسديږی که له مجبوری وزی نو نه ګنهکار يږی اودصاحبينو (امام ابو يوسف اوامام محمد رحمهما الله) دمسلک سره سم که تر نيمه ورځ زياته دباندی نکړی تيره نو اعتکاف نه فاسديږی په داسي مجبوری کي دغه مسلک عملي کول کيداي شي.

( فتاوی رحيميه ج۵ص۲۱۱ دمراقی الفلاح ص۴۰۹ په حواله )

**ايا معتکف دحکومتي وظيفي اخيستلولپاره وتلاي شي**

پوښتنه:دلته په (برطانيه ،لندن) کي کارکونکی ښا غلی ډير کم اعتکاف کوی زياتره هغه خلک معتکفان وی کوم چي په فابريکه ( کارخانه) اونورو کي کارکوی ،خووداسی خلکوته په هفته کي يوځل په حکومتی دفتر کي تر امضاء کولو وروسته پيسي



ورکول کيږی همدغه ددوی تنخواه ده ،که دفتر ته ورنشي نو وظيفه نه ورکول کيږی نو دلاس ليک لپاره آيا معتکف تللاي شي ؟

ځواب:که بيله دی دده ګذاره نشوه کيدلای بيا خو تلای شی اوتر دستخط کولو وروسته دی سمدستی مسجد ته راشي ،او احتياطا دی وروسته ديوی ورځي داعتکاف قضاء هم راوړی.

اوکه بيله دی دده ګزاره کيدله نو دتګ اجازه نشته ،که ولاړشي نو اعتکاف ماتيږی.اوداعتکاف ماتولو ګناه به هم وی.

( فتاوی رحيميه ج۵ص۲۱۲)

**دو ينستانو جوړولو اومستحب غسل لپاره وتل څنګه دي**

پوښتنه:دمعتکف لپاره داسی شيان کوم چي دپاکی سره تړاو لري دمثال په ډول دسرو ويښتان جوړول يامستحب غسل کول ددغو لپاره له مسجد څخه دباندی وتل جائز دی او کنه ؟

ځواب:دمعتکف لپاره دسر خريلو يا مستحب غسل کولو لپاره له مسجد څخه بهرته وتل صحيح نه دی اعتکاف فاسد وی ،که سر خرييل ضروري وي نو داعتکاف په ځای کي څادر اونور غوړوی سر خرېلای شی اوپوره احتياط دی کوی چي وېښتان اونور په مسجد کي ونه لويږی (فتاوی رحيميه ج۵ ص۲۰۱) په حواله دعالمګيری ص:۲۱۵ ج:۲

**په مسجد کي دوېښتا نو جوړول څنګه دي**

پوښتنه:دمعتکف لپاره په مسجد کي وېښتان جوړول جائز دی کنه ؟

ځواب: خيل ويښتان پخپله جوړول جائز دي او په نائي جوړولو کي داتفصيل دی چي که بيله اجوری کارکوی نو په مسجد کي دننه جائز دي او که يې په پيسو کوی نو معتکف دی په مسجد کي دننه وی اونائي دی له مسجد څخه دباندی کښيني ويښتان دی ورجوړ کړی ،په مسجد کي دننه په مزدوری کارکول جائزنه دی.

(احسن الفتاوی پاکستاني ج۴ص۵۰۲)

**ايا معتکف دسګرټو بيړيو اونوروڅکښلو لپاره وتلای شي**

پوښتنه: معتکف دبيړی څکولو عادی دی په شپه کي تر لس ځله زيات بيړی څکوی نو داپه طبعی اړتيا کي داخل دی اوکنه ا وددی لپاره دوتلو شرعا اجازه شته اوکنه اوکه اجازه وی نو خوله پاکول کفايت کوی که به اودس هم کوی ؟

ځواب: له اعتکاف کولو مخکی دی دبيړی پريښودلو کو ښښ وکړی که په دی کامياب نه شو نو شمير اومقدار دی کم کړی اوکه و څکولو ته بيا هم مجبور وی نو کله چي داستنجاء اوپاکي لپاره ووزی هغه وخت دی دبيړی اړتيا تر سره کړی يوا ځی دبيړی لپاره دی نه وزی.

خوکله چي مجبورشی اودطبيعت دخرابيدو ويره وی نوددی لپاره هم وتلای شي چي په داسی اضطراری حالت کي داهم په طبعی اړتيا کي شميرل کيږی او اعتکاف نه فاسدوی.



په فتاوی رشيديه دريم ټوک مخ ۵۷ کي دی دمعتکف لپاره جائز دی چي دماښام ترلمانځه وروسته بهرته ولاړشی چلم وڅکوی خوله دی پريمنځی بوی دی ليری کړی مسجدته دی راشي.

(فتاوی رحيميه ج۵ص۲۰۲)

**دمجبوريت په وجه په اعتکاف کي کارکول څنګه دی**

پوښتنه: دبنده سره په ډاکخانه (دليک ليږلو ځای) کي کاردی آيا داعتکاف په حالت کي دډاکخاني کارکولای شم کله چي په خوله خبری ونه کړم؟

ځواب: دمعتکف په مسجد کي داعتکاف لپاره اوسيدل ضروری دی بيله دی دده اعتکاف نه شي کيدلای ددرمختار له روايت څخه معلوميږی چي دمعتکف لپاره په مسجد کي هستوګنه ضروری ده ،متيازو غولو،دجنابت دغسل ،دجمعي اونورو لپاره وتل جائزدی په همدی وجه په مسجد کي دننه دارتيا له امله دډاکخانی کارکول ياپه خوله خبری کول جائزدی ،خودډاکخاني دکارو په وجه له مسجد څخه وتل اعتکاف فاسدوی .اود اعتکاف پر مهال پټه خوله کښيستل ضروری نه دی .خو بيله اړتيا اوبيهوده خبری مکروه دی.

(فتاوی دارالعلوم ج۶ص۵۱۳دردالمحتارج۲ص۱۸۵باب الاعتکاف په حواله)

**معتکف که کوروالی اونوروکړی نوڅه حکم دی**

جماع(کوروالی) اونور کول خوا که قصدا وی اوکه په هيره د اعتکاف دپامه وتلو په وجه په مسجد کي وکړل شي يا له مسجد

څخه دباندی .په هرحال کي اعتکاف باطليږي ،اوكوم كارونه چي زياتره دکوروالی باعث گرځي دمثال په ډول ښکلول ،يا مباشرت فاحشه (غاړه په غاړه .) کيدل اونور هغه هم داعتکاف په حالت کي ناجائز دی مگر په دغو اعتکاف نه باطليږي تر څو چي مني راونه وزی .هو که په دغو کارو نو مني راووزي نو بيا اعتکاف فاسديږي ،خوکه يواځي په خيال اوفکر مني راووزی نو اعتکاف نه فاسديږي. (بهشتي زيور حصه ۱۱ص۱۰۹) ( دشرح البداية ج۱ص۲۱۱،شرح التنوير ج۱ص۱۵۸ په حواله اوپه کتاب الفقه ج۱ص۹۵۰ کي دامسئله مطرح ده.

داعتکاف په حالت شهوت راپارونکی حرکتونه کول حرام دی.هو که يواځي په فكر يا کتلو يااحتلام انزال وشي نو اعتکاف نه باطليږي خواکه داسی کيدل دده عادت وی او ګڼه وی.

### معتکف که له اعتکاف ځای څخه دباندی وايستل شی نوڅه حکم دی

که کوم څوک په زورله اعتکاف ځای څخه وايستل شی نو دهغه اعتکاف پر ځاي نه پاتيږی دمثال په ډول په کوم جرم کي دوالی له لوری حکم وشو چي پوليس دي دي بندی کړی يا کوم قرض ورکونکی دي دباندی راوباسی ،دغه رنګه که دکومی شرعی ياطبعی اړتيا لپاره ووزی اوپه لاره کي يي کوم پورورکونکی تينګ کړی يا ناروغه شی اوداعتکاف ترځای په رسيدوکي وځنډيږی نو هم اعتکاف پرځای نه پاتيږی.

(بهشتي زيور حصه ۱۱ص۱۰۹ دشامي ج۱ص۱۸۳ په حواله )



### معتکف که ليونی يا بيهوښه شي نو څه حکم دی

داامام اعظم رحمة الله عليه په نزد پر معتکف که ترڅو ورځو بيهوښی راشي نو اعتکاف فاسديږی دغه هم دليونتوب حکم دی .خو که دنشي حالت په شپه کي راشي نو اعتکاف نه فاسديږی.دغه رنګه په ښکنځلو جنګ اوجګړو اونورو ګناهونو اعتکاف نه فاسديږی (کتاب الفقه ج۱ص۹۵۴)

### ايا معتکف کوم دنياوی کارکولای شي

داعتکاف پر مهال بيله اړتيا په کوم دنياوی کار بوختيدل تحريمی مکروه دی مثلا پيرل پلورل يادتجارت کوم کارکول ،هو که کوم کار ډير ضروري وی مثلا په کورکي دخوراک شئ نه وی اوله ده پرته دداد ورړانيونکی بل څوک نه وی په داسی حالت کي رانيول خرڅول جائزدی مگر کوم شئ چي رانيول شوی وی هغه مسجد ته راوړل په هيڅ حال کي جائزنه دی په دی شرط چي دهغه ومسجدته په راوړو دمسجد دخرابوالی يالاری بنديدو ويره وی ،هو که دمسجد دخرا بيدو يادځای نيولو ويره نه وی نو دځينو په نزد جائزدی. (بهشتی زيور حصه ۱۱ص۱۱۰ دشرح التنوير ج۱ص۱۵۷ په حواله )

### دزيات نه واقع کيدونکی عذر حکم

کوم عذر چي زيات نه واقع کيږی دهغه لپاره خپل داعتکاف ځای پريښودل داعتکاف ضد يعني جائزنه دی ،مثلا دکوم ناروغه دپوښتني لپاره يادکوم ډوبيدونکی، دژغورلو لپاره يااور وژلو لپاره يا دمسجد د ړنګيدو له ويری که څه هم په دغه صورتونو کی له

اعتکاف ځای څخه وتل ګناه نده بلکه دځان ساتلو په غرض وتل ضروری دی خو اعتکاف پر ځای نه پاته کیږی.

(بهشتی زیور حصه۱۱ص۱۰۹دشامی ج۲ص۱۸۳په حواله)

## ځینی فاسدونکی اونه فاسدونکی شیان

پوښتنه :لاندنی لیکل شوی شیان مسنون اعتکاف فاسدونکی دی اوکنه ؟(۱) له اودس مخکی بیله قصده اودس ،داوداسه ځای په صابون لاسونه مخ پریمنځل ؟

(۲)تراودس وروسته داوداسه پرځای په ولاړه داودس اوبه په دسمال وچول.

(۳)له اودس مخکی دلاس ساعت (ګړی) داودس پر ځای له لاسه خلاصولو وروسته په جیب کي اچول بیا اودس کول یااودس په ځای داودس لپاره دختلوپرمهال له لاسه ساعت ایستل اوپه جیب کي اچول

(۴) تر تېنی دباندی خلک په قطارکی ولاړدی نو هلته په انتظار دریدل.

(۵) تر اودس مخکی داودس پر ځای خپله ټوپی ( خولی) یادستمال په میخ راځړول.

(۶) له کور څخه کوم ډوډی راوړونکی نه وی نو ډوډي راوړلو لپاره کورته تلل.

(۷) ډوډی لپاره وکورته په رسیدو معلومه شوه چي ډوډی تیاریدل لږ وخت غواړی دهغه انتظار کول.



(۸) احتلام وشو اوسړي اوبه تاوان پیښوی نو داوبو تودولو لپاره له مسجد څخه وتل یا دتودو اوبو راوړلو لپاره کورته تلل وهلته داوبو دګرمیدو په انتظار دریدل.

(۹)داعتکاف پر مهال ناروغه شو ،اودواورکونکی څوک نشته. اوداکټرته ورتګ ضروری وی نو ددوالپاره له مسجد څخه وتل.

شرعی حکم څنګه دی ؟

ځواب: (۱) او(۲) اعتکاف فاسدیږی (۳) تر(۷) جائزدی .(۸) جائزدی . داحتلام په حالت کي دتودو اوبو په انتظار په تیمم وهلوپه مسجدکي دریدل جائزنه دي .سمدستي دی له مسجد څخه ووزی .له مسجد څخه دباندی داوبو تودیدو په انتظار دریدل جائزدی:

(۹) ددوالپاره په وتو اعتکاف فاسدیږی اوددی ورځی قضاء لازمه ده ،خو دسخت مجبوریت په صورت کي په وتلو ګناه نه کیږی ،اعتکاف په هر حال فاسدیږی اوقضاءلازمیږی.

(احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۵۰۸دردالمحتارج۲ص۱۴۵په حواله )

## که معتکف په هیره له مسجد څخه ووزی نو څه حکم دی

پوښتنه:که په هیره معتکف له مسجد څخه ووتی نواعتکاف فاسدیږی او کنه ؟

ځواب:په هیره په وتو هم اعتکاف فاسدیږی.

(احسن الفتاوی پاکستانی ج۴ص۴۹۷دردالمحتارج۲ص۱۸۲په حواله )

په هیره په وتو هم خپل داعتکاف مسجد دیوی دقیقي بلکې
تردی هم په کمه پریښودل جائزنه دی.
(بهشتی زیور حصه۱۱ص۱۰۹دشرح بدایة ج۱ص۲۱۰ په حوال

## دمعتکف لپاره ښی خبری

داعتکاف په حالت کي یومخ پټه خوله کښینستل هم تحریم
مکروه دی:هو ناوړه خبری دی تر خوله نه باسی دروغ دی نه وای
،غیبت دی نه کوی بلکی دقرآن شریف په تلاوت یادکوم دینی عل
په لوستلو یازدکړه ورکولو یادی په کوم بل عبادت کي وخت تیر
وی لنډه داچي پټه خوله کښینستل هیڅ عبادت نه دی.
(بهشتی زیور حصه۱۱ص۱۱۰دشرح البدایة ج۱ص۱۲۶په حوال

## دښو خبرو یو لنډ سر لیک

(۱) قرآن کریم لوستل (۲) په درودشریف ،استغفار اوتسبیحات
مشغولیدل ،(۳) ښی خبری کول دهغوی زده کول ښودل ،ددینی
کتابونو مطالعه کول اوریدل اورول (۴) وعظ اونصیحت کو
(۵) په جامع مسجد کي اعتکاف کول(رمضان کیا هي ص۱۴۸
په اعتکاف کي کوم ځانګړی عبادت شرط نه دی .لمونځ ،دقرآ
کریم تلاوت ، ددینی کتابونو زدکړه اوښودل یا ذالله "ذکر کو
لنډه داچي کوم عبادت یي زړه وغواړی کوی دی.
(احکام رمضان المبارک دارالعلوم ص



## د اعتکا ف مکرو ها ت

(۱)پټه خوله خاموشه کښینستل اوداښه کار بلل ،نن سبا ناپوه خلک په اعتکاف کي پټه خوله کښینستل هم څه دثواب خبره بولی

(۲) جنګ جګړه چیغي نعری وهل اوبیهوده بي معنی خبری کول.

(۳) دزانیولو خرڅولو لپاره کوم شئ مسجد ته دننه راوړل.

(رمضان کیا هی ،ص۱۴۹)

## داعتکاف اداب

### داعتکاف په ادابوکي داشیان دی

(۱) معتکف دی له اغوستو جامو پرته نوری جامی هم دځان سره راوړی ،ولی چي ځینی وختونه (دجامو بدلولو ) اړتیاپېښیږی.(

۲) که داعتکاف موده تراختره ورسیږی نو داختر شپه دی په مسجد کي تیره کړی ترڅو له مسجد څخه ووزی دعیدګاه پرلور روان شی اویو عبادت ( اعتکاف ) له بل عبادت (داختر لمونځ) سره یو ځای شی.

(۳)دمسجد په دننی برخه کي دی هستوګنه کوی (اعتکاف دی کوی ) ترڅو په خبرو اترو په اعتکاف کي خلل واقع نه شی.

( ۴) اعتکاف دی دروژی په میاشت کي وی .دغه رنګه دقدر دشپی دموندلو په هیله دی په آخیری لس ورځو کي وی چي په هم دغه ورځو کي دقدر دشپی غالب ګومان دی:

(۵)اعتکاف دی تر لس ورځی کم نه کوی:

(۶)له بنو خبرو سوادی بله کومه خبره نه کوی.

(۷)داعتکاف لپاره دی ترټولو ښه مسجد انتخاب شی مثلا مسجد حرام تردی وروسته مسجدنبوی بیامسجداقصی اودادهغو خلکو لپاره دی چې هلته هستوګنه کوی تردی وروسته دجامع مسجد درجه ده.

( ۸ ) داعتکاف پر مهال دی دقرآن کریم په لوستلو ،دحدیث په مطالعه په دینی علومو دهغوی په تعلیم اونورو مشغول وی.

(کتاب الفقه ج۱ص۹۵۴)

## داعتکا ف منع شیا ن

داحنافو په نزد په اعتکاف کې څو شیان تحریمی مکروه ی.

(۱) په دی خیال پټه خوله کښېنستل چې په دی کې زیات ثواب دی ،که داخیال نه ؤ نو مکروه نه دی .هو پټه خوله پاتی کیدل دژبې له ګناه څخه دځان ساتلو لپاره ترټولو غټ عبادت دی.

(۲ )ومسجدته دخرڅولو لپاره سا مان راوړل تحریمی مکروه دی ، خودرانیولو خر څولو معامله دی کومه چې دده اودده دبچیا نو لپاره ضروری وي په مسجد کې وکړله شی خو سامان دی مسجد ته نه راوړی.نو جائز دی لیکن تجارتی معاهده په مسجد کې جائز نه ده. (کتاب الفقه ج۱ص۹۵۶)

## دیوی غلطی خبری لیری کول

څینی خلک داګنی چې اعتکاف کونکی چې دکومی اړتیا لپاره [illegible]ی ووزی نو دهغه سره خبری اتری کول جائز نه دی داغلط دی



په روانه روانه خبری اتری کول جائز دی :هو دخبرو لپاره یا دکوم بل کار لپاره دریدل جائز نه دی. (رمضان کیاهي ؟ص۱۵۱)

## اعتکاف اوحنفی مذ هب

داحنافو په نزد دمعتکف له مسجد څخه دباندی راوتلو دوه صورتونه دی

(۱) واجب اعتکاف که دنذروی په دی صورت کې له مسجد څخه وتل مطلقا جائز نه دی که شپه وی او که ورځ وی.قصدا وی که په هیره ،نو که کوم سړی له کوم مجبوریت اوداسی عذر پرته په کوم کې چې داعتکاف نذر منونکی لپاره دباندی راوتلو اجازه نه وی له مسجد څخه دباندی راوواتی نو دده اعتکاف ماتیږی.

## له مسجد څخه ددباندی راوتلو دری قسمونه دی

(۱) دفطر ی عذر په وجه وتل لکه دبولو لپاره یا احتلام وشی اوپه مسجد کې غسل کول شونی نه وی اونور په داسی صورت کې دی معتکف یوائې دجنابت دغسل لپاره یا یوائې دبولو داړتیاد تر سره کولو لپاره له مسجد څخه ووزی اودهمدومره وخت لپاره چې دامقصد پکی پوره شی .دشرعی عذر په وجه له مسجد څخه وتل مثلا داچې په کوم مسجد کې اعتکاف کوی په هغه کې دجمعې لمونځ نه کیږی اود جمعې دلمانځه لپاره بل مسجد ته تلل وی نو په داسی صورت کې دی دومره وخت مخکی له مسجد څخه ووزی چې هغه مسجد ته په رسیدو دخطبي تر اذان مخکې څلور رکعته اداکولای شی اودلمونځ تر اداکولو وروسته دی دومره

وخت هلته پاتې شي چې پکي څلور يا شپږ رکعته کولاي شي که تردې زيات هلته پاتې شو نو اعتکاف نه فاسديږي ،ولي چې په دې دوهم مسجد کي هم اعتکاف کيدلاي شي .خوداسې کول تنزيهي مکروه دي ځکه چي په پيل کي چي چيرې اعتکاف کول غوره کړي ؤ بيله اړتيا دهغه په خلاف وکړل شو .

دمجبوريت دعذر ونو له امله وتل مثلا په کوم مسجد کي چي معتکف دی هلته دځان اومال خطر ورپيښ دی يا مسجد ړنګيږي نو په داسې صورت کي دی له مسجد څخه ووزی سمدستي کوم بل مسجدته داعتکاف په نيت تلل په کاردي.

( ۲ ) دوهم صورت دادی چي اعتکاف ( دنذر نه بلکی ) نفلي دی په داسې صورت کي بيله عذر هم له مسجد څخه وتل پروانه لري ، ولی چي په نفلي اعتکاف کي داسې نه وی چي په دومره وخت له مسجد څخه دباندې تيرولو دی اعتکاف باطل شي ( په نفلي اعتکاف کي ) له مسجد څخه په دباندې راتلو مخکنی اعتکاف نه باطليږي بلکي پای ته رسيږي :ځکه نو که مسجد ته بيرته راغلی بيايي اعتکاف وکړ نودهغه ثواب به جلاوی ،خوپه واجب اعتکاف کي بيله عذر له مسجد څخه بهرته راتلل ګناه ده اومخکنی اعتکاف باطليږي .داحکمونه په هم هغه حالت کي دی کله چي اعتکاف واجب وی اوپر لپسی ددغو ورځو داعتکاف نيت کړل شوی وی:که يې يواځي داعتکاف دنذر نيت کړی ؤ يايې ځانګړي مودې داعتکاف نيت کړی ؤ خو دپر لپسی قيد



ورسره نه ؤ نو په داسې صورت کي داعتکاف پرمهال له مسجد څخه بېله عذر دباندې راوتل جائزدی ،خوپه راوتلو سره هغه اعتکاف ختميږي اوبيرته به راځي داعتکاف نيت به کوي .هو که يې له مخکې څخه دبيرته راتلو نيت کړی ؤ يا له مسجد څخه وتل داړتيا دپوره کولو لپاره ؤ نو له نوی سره ونيت ته اړتيا نشته .همدغه حکم دنفلی اعتکاف دی. (کتاب الفقه ج۱ص۹۵۳)

### دټولنيز اعتکا ف ثبو ت

پوښتنه:آيا داعتکاف اهتمام له صحابه کرامو رضي الله عنهم)څخه ثابت دی

ځواب:لومړی خو کوم شی چي داعتکاف مقصد ده هغه وصحابه کراموته دتګ راتګ دبوختيا ؤ سره حاصل ؤ، نن هغه شئ په اعتکاف سره په ګرانه ولاس ته کيږي .خو بيا هم له دغو ښاغليو څخه داعتکاف اهتمام ثابت دی.

په مسلم لومړی ټوک مخ ۳۷۰کي دی چي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم درمضان دلومړی عشری اعتکاف وکړ ،بيا يي ددوهمی عشری اعتکاف وکړ ،بيا يي وفرمايل چي مادلومړی عشری اعتکاف دقدرد شپې دپلټنې لپاره کړی ؤ: بيامې ددوهمی عشری اعتکاف هم ددې لپاره وکړ،بيا وماته کوم ښودنکي ( ملائکي ) وښودل چي هغه په آخرنی عشره کيده .( ځکه دآخری عشری اعتکاف کوم ) څوک چي په تاسو کي اعتکاف کول غواړي ودی کي ،ځکه ده مبارک (دآخری عشری اعتکاف وکړ صحابه کرامو)هم له ده سره اعتکاف وکړ. په بخاری ( ج۱ص۲۷۱ ) کي داسې الفاظ دی ،کومو

خلکو چي له ماسره دلومړۍ عشرې اعتکاف کړی دی هغوی دې
دآخرۍ عشرې اعتکاف هم وکړي.
له مسلم ( ج۱ص۳۷۱ ) څخه معلومیږي چي دنبي صلی الله علیه
وسلم دبي بي ګانو لپاره هم خیمي ولګول شوې:ګواکي نبي صلی
الله علیه وسلم داخوښه نه کړه په دې وجه ددوی دنامخلصه کیدو
اندیښنه ورته وشوه ،یا دغیرت په وجه چي په مسجد کي بـ
نارینه هم وي ،منافقان ، صحارایان هرډول خلک به راځي ،بیابـ
دانساني اړتیاؤ لپاره وتل هم ضروري وي .یا په دې وجه چي دد
مبارک ددوی سره په مسجد کي کیدل داعتکاف مقصد چي لـ
دنیا اومیرمنو څخه ګوښه کیدل به فوت شي .( نووي شرح مسلم
لومړی ټوک مخ ۳۷۱ )مأخوذ ازملفو ظات فقیه الامت ص۴۲۶
قسط ثالث حضرت مولانا محمود حسن صاحب مدظله د
دارالعلوم دیوبند مفتی اعظم )

## د اعتکا ف مستحبا ت

داعتکاف اداب اومستحبات دادي ددغو پوره خیال وساتی تر
څو مو حقیقي برکتونه اوګټې په برخه شي ( ۱ ) په اعتکاف کي
نیکۍ اوښې خبرې کوي.
( ۲ ) درمضان المبارک دآخري پوره عشرې داعتکاف کولو هڅې
کوي.
( ۳ ) ترخپله وسه په جا مع مسجد کي اعتکاف کوي.



( ۴ ) دخپل توان سره سم خپل وختونه زیات نه زیات په الهي
عبادت کي صرفوي مثلا نفلونه کوي ،دقرآن کریم تلاوت کوي
،دديني علم دصحیح اوسند درلودونکیو کتابونو مطالعه کوي
درسول الله صلی الله علیه وسلم دپاک سیرت دانبیاء علیهم
السلام صحیح کیسي دصحابه کرامو ائمه وو اواولیاؤ الله
رحمهم الله حالات اوحکایات دهغوی دویناؤ اوملفو ظاتو
مطالعه کوي ،دشرعي مسئلو کتابونه لولي.خو په کومه خبره چي
پوه نشي پخپله تأ ویل یا مطلب مه راباسي بلکي له کوم معتبر
عالم څخه دهغې په مطلب ځان پوه کړي.
( ۵ ) مسنون ذکرونه ووایاست:څومره تسبیحات چي په هو سایي
سره ویلائ شي تر ټولو غوره دي. تسبیحا ت دادي:
سبحان الله ، الحمد لله ، الله اکبر ،لااله الا الله محمد رسول الله لاحول
ولاقوة الا بالله.
اوهراستغفار چي مو په یادوي هغه وایاست مثلا استغفر الله یا
إستغفر الله ربي من کل ذنب واتوب الیه یارب اغفر لي ، اوهر ذکر
چي کوی په توجه اوفکر سره یې کوي.
( ۶ ) درود شریف ډیر وایاست ،تر ټولو غوره درود هغه دی کوم
چي په لمانځه کي ویل کیږي .( ۷ ) دصلوة التسبیح په کولو لس
ډوله ګناهونه معافیږي ،ځکه نو هره ورځ یي کوي.
( ۸ ) داشراق ،څاښت ،سنن زوال ،اوابین اودتهجد دلمانځه
بشپړ خیال ساتی ،تحیة المسجد اوتحیة الوضوهم مه پریږدی (

۹) دسهار له لمانځه څخه تر اشراق پورې او دمازدیګر تر فرض وروسته دلمرتر لویدو پورې دالله" ذکر کوي (۱۰) دقدر دشپې په پنځو شپو کې په ویښه دعبادت کولو هڅې کوی .اودمناجات مقبول یو منزل هره ورځ واياست ،په دې کې دقرآن اوحديث ډيرې ښې دعاګانې راغونډې کړل شوې دي.

(۱۱) په اعتکاف کې پرده اچول اونه اچول دواړه ډوله له نبی صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دی :که له پردې اچولو څخه دریا ،کبر اونور پیداکیدو ویره وی نو مه یې اچوی اوکه ددغو شیانو اندیښنه نه وی نو دګوښه توب لپاره پرده اچول غوره دی ،خو کله چې دفرض لمانځه جماعت پیل ګیږې او دپردې په وجه په جمع کې دخلل رامنځ ته کیدو و خطره وی نو پرده پورته کول په کاردی بلکې بستره اوسامان هم پورته کول په کاردی.

(۱۲) ترڅو چې شونې وی ونورو اعتکاف کونکیو اولمونځ کونکو ته دی په کړو اووینا اوپه هیڅ ډول عمل له ستونزو رسولو څخه سخت احتیاط وکړی. (عالمګیری اوفتح القدير)

## داعتکا ف مبا حا ت

ځینی خبرې داعتکاف په حالت کې دمعتکف لپاره جائز اومباح دی

(۱) معتکف ته په کاردی چې په مسجد کې دی خوراک ښاک کوی هلته دی ویدیږی ،پریوزی ،کښینی اوارام دی کوی لی خبرې په مسجد کې صحیح دی (ردالمحتار)



(۲)دخپلو بچیانو په اړه یادرانیولو خرڅولو خبرې هم داړتیا په اندازه جائز دی .(۳) معتکف دخوراک ښباک مختصر شیان اوداړتیاؤ سامان هم له ځان سره ایښودلاي شی خو دومره دی نه وی چې دوکان ترې جوړکړی یا دځای نیولو په وجه لمونځ کونکی تنګ شی اودلوستلو لپاره دینی کتابونه هم ایښودلاي شی .
(ردالمحتار)

(۴)که دخوراک ښباک یاکوم داړتیاد شئ رانیول وی نو هغه دکتلو لپاره مسجدته راغوښتلاي شی تر څو کوم بیکاره شی رانشی. (ردالمحتار)

(۵) دمعتکف لپاره مختصره بستره ،دډوډی خوړلو ،اوبه څکلو ،دلاس اونورو پریمنځلو دلوښی ایښودلو اجازه شته.(ردالمحتار)

(۶) معتکف که تجاریا فابریکه (کارخانه) درلودونکی وی نو وخپل ځاي ناستی ته یا لاندی نو کرانو ته دتجارت ضروری لارښودنی کولا ي شی اودهغه په اړوند خبری هم پوښتلاي شی که دکوم رانیونکی سره ضروری خبری کول وی نو داړتیا په اندازه دسودا په اړه خبری کولو ګنجائش شته. (بدائع)

(۷) معتکف جامې بدلولاي شی ،عطر کارولاي شی ،په سر اوږیره تیل وهل ږمونځول ټولی خبری جائزدی.(بدائع)

(۸) په حالت داعتکاف کی معتکف خپله یادبل نکاح کولای شی ،که وښځي ته رجعی طلاق ورکړی وي نو په خوله هغې ته رجوع کولاي شي. (بدائع)

(۹) معتکف که خپل سر ،ږیره یا دبدن کومه حصه پریمنځل وغواړی یا خوله پریمنځی نو ددی خبرو پوره خیال دی ساتی چې په ویښتانو اوکارول شویو اوبو دی مسجد بالکل نه ککړه وی ،په تیلو دی دمسجد دیوالونه ،صفونه ،انګړ بالکل نه خرابوی کنې منع کیږی (بدائع)

(۱۰) معتکف که دځان هو ساه کولو په نیت یا طبعا یا بې له اړتیا خبرو څخه دځان ژغورنی لپاره پټه خوله کښینی نو جائز بلکی غوره دي.

(۱۱) داعتکاف پر مهال دینی خبری کول دثواب باعث دی اوداسی خبری کول چې په کې ګناه نه وی مباح دی ،داړتیا په اندازه ددنیا خبری کول هم نه دی منع ،خو خبری کول دی خپل کار نه جوړوی. (حاشیه شرنبلالی)

(۱۲) ومعتکف ته دنو کانو پری کولو ،بریتو سمولو ،دسر ویښتانو جوړولو اجازه ده خو چې په مسجد کې نو کان ،ویښتان ،اوبه اونور بالکل ونه لویږی. (فتح الباری)

تشریح: داخبری هغه چاته رامخته کیږی څوک چې پر لپسی دیوی میاشتی یا زیات اعتکاف کوی ،کنې دلس ورځود اعتکاف کونکو لپاره په دغو شیانو ځان اخته کول ښه نه دی داکارونه تر اعتکاف وروسته هم کیدلاي شی .وماشومانو ته بیله اجوری دقرآن کریم اودین زده کړه ورکول داعتکاف په حالت کې صحیح (بحرالرائق)



## ومعتکف ته دمیر منو را تلل

ومعتکف ته که داعتکاف په حالت که کوم ضروری کاروی نو کوروالا یا له محرماتو څخه مثلا مور ،خور ،اوداسی نور مسجد ته راتلای شی خودلمانځه وخت دی نه وی اوله پردی سره دی راځی لکه چې په حدیث شریف کې راغلی دی.) که ښځه یاله محرماتو څخه څه میر منی راغلی اوکوم بل څوک یې ووینی نو هم هغه وخت خبره صفا کول په کاردی چې له دوی سره زما خپلوی یا دازما کوروالاده تر څو بل څوک بدګمانه نه شی :له رسول الله ﷺ څخه همداسی ثابت دی.

## دا عتکا ف مکرو ها ت

په اعتکاف کې ځینی خبری مکروه منع دی اوځینی خبری ناجائز اوحرام دی :دهغوی ټولو څخه دځان ساتلو پوره خیال ساتی.

(۱) داعتکاف په حالت کې دمعتکف لپاره په قصد یا په هیره په شپه کې یا په ورځ په مسجد کې یا په کورکی دښځی سره کور والی کول ،مچی او غاړه په غاړه کیدل یا په شهوت ددی بدن ته لاس وروړل ټول حرام دی.

یادونه:-په پورتنی شیانوکې داعتکاف دماتیدو یانه ماتیدو مسئلی داعتکاف په فاسدونکیو کې بیانوو کوم چې په مخ کې راځي،

(۲) ځینی خبری په هرحال کې حرامی دی ،خو داعتکاف په حالت کې په کې نوره هم سختی راغلی ده ،مثلا غیبت کول ،چغلی کول

،جنګ اوجګړې کول ،دروغ ویل ،اوددروغو قسمونه اخیستل ،بهتان لګول ،وکوم مسلمان ته ناحقه تکلیف ورکول ،دچاعیب پلټل ،څوک رسواکول.دکبر اولویي خبرې کول ریا اونور کول له دغو اوپه دې ډول ټولو خبرو څخه ښه احتیاط کوی( شامی )

(۳) کومې خبرې چې مباح وی دکومو په کولو چې نه ثواب وی اونه عذاب.دا اړتیا پر مهال دکولو اجازه ده.بې له اړتیا په مسجد کې ددنیا په خبروکولونیکیانې ضائع کیږی :( درمختار ) (۴) دمعتکف لپاره بیله اړتیا کوم سړی ومباح خبر وته رابلل اوخبرې کول مکروه دی اوخاص په همدې غرض مجلس جوړول ناجائز دی

## دمعتکف ورځپاڼې لوستل

دمعتکف لپاره داعتکاف په حالت کې داسې کتابونه رسالې چې په هغوی کې ددروغو کیسې اوددین ضد خبرې وی ،داسلام په خلاف لیکنې وی ،بې حیا مضمونونه وی ،دغه رنګه ورځپاڼې ویل ،اوریدل ،دغه رنګه زیاتره ورځپاڼې له عکسونو خالی نه وی اودعکسونو مسجد ته راوړل جائز نه دی :ځکه له دې ټولو خبرو څخه دمعتکف لپاره ځان ژغورل په کاردی اودکوم مقصد لپاره چې یې اعتکاف کړی دی په هغه کې بوختیدل په کاردی.

(اعتکاف کې فضائل ومسائل )

دمعتکف لپاره یو مخ پټه خوله کښینستل اودا عبادت ګڼل تحریمي مکروه دی که یې عبادت ونه بولی نو مکروه نه دی.

(البحرالرائق )



تجارتي یا نا تجارتي سامان مسجد ته له راوړلو وروسته خرڅول یارانیول ناجائز دی اوبې له سختې اړتیا دپیرلو پلورلو خبرې کول هم مکروه دی. (درمختار ،بحر)

دمعتکف لپاره په مسجد کې دننه په اجرت اخیستلو کوم کارکول جائز نه دی ،که مذهبی زده کړه ورکول وی اوکه ددین اودنیا کوم بل کاروی(اشباه، شامی ).

## داعتکاف فاسدوونکی شیان

ځینې خبرې داسې دی چې دهغوی په کولو واجب اومسنون اعتکاف فاسدیږی اوس دهغوی یادونه کیږی.په یادوساتی چې داحکم دنفلي اعتکاف نه دی ددې حکم دنفلي اعتکاف په بیان کې راځي.

مسئله :ومعتکف ته بې له شرعي اوطبعي اړتیا له اعتکاف والا مسجد څخه بهرته وتل جائزنه دی نه په شپه کې اونه په ورځ کې هر وخت دی په اعتکاف ځای کې وی. (عالمګیری)

مسئله :معتکف که دیوې دقیقې لپاره هم بیله شرعی اوطبعی اړتیا له اعتکاف ځای ( یعنی مسجد څخه ) بهرته ووزی نو دحضرت امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد دده اعتکاف فاسدیږی . (عالمګیری)

مسئله :بیله شرعي اوطبعي اړتیا که قصداووزی اوکه په هیره په هرحال کې اعتکاف ماتیږی. (عالمګیری)

مسئله:که دمعتکف له قریبانو څخه کوم څوک سخت ناروغه شي ،یا څوک وفات شي نو دمعتکف په تللو اعتکاف پر ځای نه پاتیږي ،خو په داسې حالت کې په تللو ګنهګار کیږي نه :بلکه که دناروغ له معتکف پرته بل کوم څوک پوښتونکی نه وي ،مریض ته ډیر تکلیف دی ،دمرګ ورته خطره ده نو دمعتکف لپاره تلل په کار وروسته دی ددی قضاء راوړي دغه رنګه مثلاکوم خپل یې مړشو اوغسل کفن اوښخولو بل کوم څوک نشته بیا هم له اعتکاف څخه ورتلل په کاردی بیادي وروسته قضاء راوړي.
(البحر الرائق)

مسئله :که معتکف دمړي دلمبولو ،کفن تیارولو ،جنازي لمونځ کولو یاورکولو لپاره یادمړي کټ ته اوږه ورکولو یا په دفن کې برخه اخیستلو لپاره بهرته ولاړشي نودده اعتکاف ماتیږي .بیله سختۍ اړتیا دی اعتکاف نه ماتوي ،هو که بیله معتکف کوم بندو بست نه شي کیدلای نو بې شکه ولاړدی شي اووروسته دي قضاء راوړي (عالمګیري)

مسئله :دشرعي یا طبعي اړتیا لپاره دباندې تللي ؤ په لاره کې پورورکونکي یاکوم بل حقدار ټینګ کړي اومعتکف هم ورته ودریدي نو دحضرت امام اعظم رحمة الله علیه په نزد دده اعتکاف مات شو .ولې چې معتکف ته په کاردي چې ورته ونه دریږي بلکې په روانه روانه دی هغه ته ځواب ورکړي یادي ومسجد ته دراتلو



ورته ووایې که دیوې دقیقې لپاره هم ودریدي نو اعتکاف ماتیږي. (عالمګیری)

مسئله:معتکف پخپله سخت مریض شو چې له کبله یې په مسجد کې پاتې کیدل مشکل وي نو معتکف کورته تللای شي :دده په تلو خو به اعتکاف مات شي اما ګنهګار کیږي نه.(البحرالرائق)

مسئله :ومعتکف ته دځان اومال قوي خطر شي دکوم پر لیرې کولو چې داعتکاف پر مهال قدرت نه لري په دې صورت کې که دی کورته ولاړشي نه ګنهګار کیږي .اما اعتکاف ماتیږي.
(البحرالرائق)

مسئله :کوم حاکم یا بل چا په زور معتکف دباندې راوایستی دمثال په ډول دبندي کولو دولتي حکم وشو یا په زور پورورکونکي دباندې را کش کړي نواعتکاف فاسدیږي لیکن معتکف نه ګنهګاریږي.(قاضي خان)

مسئله : مسجد لویدی اودمعتکف تری لاندې کیدو خطره وي یاکوم ماشوم یاسړي داوبو په څاه کې ولویدی اوډوبیدی یا په اورکې ولویدی یا دلویدو یره وه نو دمعتکف لپاره له مسجد څخه په وتلو کې ګناه نشته بلکې دچادروح دساتنې په غرض واجب دی ،خو اعتکاف پر ځای نه پاتې کیږي.( علم الفقه)

## یوه لارښوونه

په بیان شویو مسئلو کې ومعتکف ته له مسجد څخه ددباندې وتلو لپاره دخپلو مخلصو اوتجربه کارو ملګرو اودوستانو سره

مشوره کول په کاردي که کوم داسې تدبير کيدلای شي چي له خپله وتو پرته کاروشی نو پخپله دی نه وزی .اودکومی سپکې ویری څخه وهمکې کیدلو څخه وروسته سمدستي راوتل صحيح نه دی که په رښتيا کوم دنه زغمل کيدو يا سخت خطر ور پيښ شي نو اعتکاف ماتول په کاردی.

مسئله :دمعتکف هیر شو دده پام هم نه ؤ چي زه په اعتکاف کي يم اوله مسجد څخه دباندی راغلی نو اعتکاف فاسدشو خواکه سمدستي په ياد ورشي ،چي زه په اعتکاف کي يم ياڅه وخت رورسته ،البته نه ګنهګار کيږي.( قاضي خان )

مسئله :داعتکاف پرمهال په کوروالي کولو که په ورځ کي وی اوکه په شپه کي ،په هیره وی اوکه قصدا ،انزال وشی اوکه نه وشي په هرحال کي اعتکاف فاسديږي (قاضي خان )

مسئله ،معتکف له شرمګاه پرته دښځي دبدن له کومې بلې برخې سره يو ځای یا مچي اوغاړه په غاړه شو نو که انزال وشی اعتکاف فاسديږي اوکه نه وشي نه فاسديږي.(قاضي خان )

مسئله:معتکف وکومې پردی ميرمنی يا نارينه ته په بد نظر وکتل يا په غلطو خيالاتو کي ورک شو نو په دی سره اعتکاف نه ماتيږي که انزال وشي اوکه نه وشي. ( قاضي خان )داسې ټول کارونه حرام دی ومعتکف ته له دغو څخه سخت پرهيز کول لازم دی.



مسئله :معتکف دچاسره په جګړه شو اوخدای مه کړه ښکنځل کول يي پيل کړل نو په دی اعتکاف نه فاسديږي اما ګنهګار کيږي (فتاوی قاضي خان )

مسئله : معتکف په مسجد کي دننه وی خوله مسجد څخه يوازې سر يالاس وباسي نو په دی اعتکاف نه فاسديږي.( قاضي خان )

مسئله :معتکف دی دناوړو تف کلو ،پوزه پاکولو ،له ډوډۍ مخکې یاوروسته لاس پريمنځلو اوخولې وينځلو لپاره له مسجد څخه دباندی نه ځي..که داودس کولو ځای له مسجد څخه دباندی وی هلته دی هم نه ځی ،په مسجد کي دی دننه بندوبست وکړي ،په توکدان یاکوم لوښي کي دی لږ ایرې یاخاورې واچوی کښي دیږدی ،په هغه کي دی ناړی توکې ،پوزه دی پاکوی ،اوپه سلمچي (دشوئ )یاکوم لوښي کي دی لاس وينځي ،يادی داودس پرنالې داسې ودريږي چي پښې يي دمسجد په غولي اوانګړ کي وی اوګرنګ ياناوړی په نالې کي ولويږي ،ولي چي له مسجد څخه سريا لاسونه دباندي راايستلای شی. (البحرالرائق )

مسئله :معتکف که دګرمې څخه دځان ساتنې لپاره يا په يخ کي لمرته کښينستلو لپاره دمسجد له حد څخه دباندی ووزی نو اعتکاف فاسديږي (البحر الرائق )

مسئله :دمعتکف لپاره دډوډۍ دراغوښتلو بندوبست کول په کاردي خواکه يي له کور څخه څوک راوړي يادی هوټل والا ته ووايي ،دهغوی نو کردی پروخت ورته راوړي ،کله چي انتظام

وشی نو دمعتکف لپاره پخپله دډوډی راوړلو لپاره له مسجد
څخه بهرته تلل جائز نه دی.که ولاړشی نو اعتکاف فا سد یږی.
(البحرالرائق)

مسئله :که دهڅو سره سره معتکف ته دډوډی راوړلو هیڅ
بندوبست ونه شو نو پخپله له کوره یا له هوټله یاله نانوائی څخه
ډوډی راوړلاي شی ،خو بیله اړتیا دی هلته نه دریږی لږ تر لږه
دومره خودی ورته ووایي چي فلانی وخت دډوډی دوړلو لپاره
راځم،تر څو دوکاندار خیال وساتی،اوتر ټولو مخکی دي خلاص
کړی ،اودغه ډوډی راوړل دلمر دلویدوپر وخت سم دی دلمر تر
لویدو مخکی دی هیڅکله نه ځي ولی چي دلمر تر لویدو مخته
اړتیا نه ثابتیږی تر دی وروسته دپیشلمی تر آخرنی وخت پوری
دتګ اختیار دی ،وروسته نشته ،اوډوډی په مسجد کي خوړل په
کاردی. (البحرالرائق)

مسئله :کوم سړی دمعتکف ډوډی راوړ له خو زیاتی نخرې يې
کولی ،نو په داسی صورت کي دډوډی راوړلو لپاره په خپله
معتکف تللا ي شی ،دغه رنګه که دډوډی راوړلو ډیره زیاته
مزدوری غواړی بیاهم پخپله راوړل جائز دی.(روح الجوار)

مسئله : معتکف ډیر سخت تږی کیږی په مسجد کي اوبه نشته
،نه څوک راوړونکی شته نو پخپله له مسجد څخه دباندی چیری
چي اوبه ژر تر لاسه کیږی اوبه راوړلاي شی ،که داوبو لوښی نه
وی نو په داسی ځای کي داوبو څښلو لپاره تلاي اوراتلاي شی



.دګرمی په موسم کي کله دپیشلمی پر وخت داسی صورت
ومعتکف ته ور پیښیږی. (البحرالرائق)

مسئله :معتکف که قصدا روژه ماته کړی نو دروژی دفاسدیدو
سره سره اعتکاف هم فاسدیږی ،اوپه روژه کي په هیره خوراک
کولو سره خو روژه نه ماتیږی څکه نو اعتکاف هم نه ماتیږی.
(البحرالرائق)

مسئله :معتکف که ددو ااخیستو لپاره دباندی ولاړی نو
اعتکاف ماتیږی .دوادکوم بل چا څخه راغوښتل په کاردی ،که
وډاکټرته ورښکاره کول وی نو مسجد ته دی راوغواړی.
(اعتکاف کي فضائل ومسائل)

مسئله:معتکف ته که احتلام وشی نو اعتکاف نه ماتیږی ،که هر
څو ځله وی که په شپه کي وی او که په ورځ کي.(عالمګیری)

مسئله :معتکف که دچا شئ غلاکړی یا دمالک له اجازی پرته
کوم شئ وخوری نو اعتکاف نه ماتیږی اماګنا ه به وی.(عالمګیری)

مسئله:معتکف که بیهوښه شی یادیوانه لیونۍ شی یا دپیر یانو
له تأ ثیراتو بی عقل شی او تریوه ورځ اوشپه زیات دغه سی وی نو
په مینځ کي یوه ورځ پاته شوه اوپر لیسی والی پر ځای نه شو
پاتی څکه اعتکاف فاسدیږی او که دیوی ورځی اویوی شپی تر
تیریدو مخکی په هوښ کي راغلی نو اعتکاف نه فاسدیږی.
(عالمګیری)

## ومعتکف ته مخته راتلونکې اړتیا وې

ومعتکف ته چي څومره اړتیاوي اوضرورتونه له اعتکاف ځای څخه دوتلو لپاره وړپېښیږي فقهاء کرامو رحمهم الله اجمعین هغه په دری ډوله کي بیان کړی دی .(۱)شرعی اړتیاوی (۲) طبعی اړتیاوی ،(۳)ضروری اړتیاوی ،اوس ددی قسمونو حکمونه اومسئلی جلاجلا ستاسو په خدمت کي وړاندی کوو.

## په اعتکاف کی دشرعی اړتیا مسئلی

دشرعی اړتیا تعریف ،دکومو شیانو اداینه چي شرعا فرض او واجب وی اوپه اعتکاف ځاي کي معتکف هغه نشی اداکولاي وهغه ته شرعی اړتیا ویل کیږی.مثلا دجمعی لمونځ ،داختر لمونځ اونور داسی لمنځونه. (البحرالرائق)

مسئله :دمعتکف په مسجد کي دجمعي لمونځ نه کیږی نو دده لپاره وجامع مسجد ته دومره مخکی تګ پکاردی چي دخطبی تر پیل کیدو مخکی هلته دوه رکعته تحیة المسجد، اوڅلو ر سنتونه په ډاډسره وکړی ،اوددی اندازه په خپله پر معتکف پریښودل شوی ده په اندازه کي که څه زیاتوب اوکمبوت راشی نو هیڅ پروانه لری ،بیا دجمعي تر فرضو وروسته دی شپږ رکعته سنت اونفل وکړی خپل اعتکاف والا مسجد ته دی راشي.
(درمختار)

مسئله :دجمعي دسنتو تر ادايني وروسته په جامع مسجد کی که څه زیات وخت لپاره پاتی شی نو جائز دی ،خو تنزیهي مکروه [illegible]



دی ،ولی -چي په کوم مسجد کی یې داعتکاف لزوم کړی ؤو دهغه یو ډول خلاف کول دی. (درمختار)

مسئله : که معتکف جامع مسجد ته دجمعی اداکولو لپاره ولاړ شی اوهم هلته یوه ورځ یوه شپه یا تردی کم اوزیات پاته شی یا پاته اعتکاف هم هلته پوره کړی بیا هم جائز خواعتکاف نه ماتیږی.، خوداسی کول مکروه دی. (بدائع)

مئسله: معتکف په خپل مسجد کي په کومه وجه جمع ونه موندله مثلا کوچنی یا غټو بولو ته تللی ؤ ،مسجدته چي راغلی ورته معلومه شوه چي جمعه شوی ده نو اوس دجمع په خاطر بل مسجد ته دباندی تلل جائزنه دی.

مسئله :معتکف که دکومی طبعی اړتیا لپاره یعنی دکوچنیو یاغټو بولو لپاره بهرته ولاړشی اودده دا اندازه شی چي زه دخپل اعتکاف په مسجدکي جمع نه شم موندلاي اوپه لاره کي کوم مسجد شته په کوم کي چي جمع کیږی یاتیاره ده نو په داسی صورت کي دلاری په مسجد کي په جمع سر ه لمونځ کول اوتر ختمیدو سمدستی وروسته مسجد ته راتلل جائزدی.
(ردالمحتار)

## یو ه قا عد ه

معتکف که دکومی طبعی یا شر عي اړتیا لپاره له مسجد څخه دباندی ولاړشی بیا دتلو یاراتلو پر مهال کوم عبادت اداکړی نو داسی جائزدی دمثال په ډول په لاره کي کوم ناروغ په مخه ورغلي

پر هغه یې پوښتنه وکړه یا دجنازې لمونځ تیاروْ په هغه کې یې برخه واخیستله ،نو هیڅ پروانه لرې ځکه چې داشیان عبادت دی ،خوپه ځانګړې توګه دهم دغوکارونو لپاره مثلاً دمریض پوښتنې دجنازې دلمانځه په نیت له مسجد څخه بهرته راوتل جائزنه دی په دې دوارو خبروکې غټ توپیر دی ،ښه ځان په پوه کړې ،دهم دغو کارونو لپاره له مسجد څخه دباندې راتلل خوناجائزدی اما که اتفاقاً داشیان ورپیښ شي نو ددوی کول صحیح دی.

(ردالمحتار)

مسئله: داخترانو په ورځ اعتکاف کول ګناه ده ،خو که څوک بیا هم اعتکاف وکړي نو دهغه لپاره داختر ولمانځه ته دجمعې په ډول تلل په کاردي ، اوداختر تر لمانځه کولو سمدستي وروسته اعتکاف ځای ته راتلل په کاردي ،داختر دلمانځه لپاره تلل په شرعي اړتیا کې داخل دی. (ردالمحتار)

## دمعتکف لپا ره داذا ن مسئلې

مسئله: داذان کولو ځای مثلاً مناره ، محراب اونور که په مسجد کې دننه وی که مؤذن ټاکلی وی اوکه نه وی ټاکلی، خودمعتکف داذان لپاره هغه ځای ته تلل بیله شبهې جائز دی ، اوله اذان پرته په بل کوم غرض هغه ځای ته تلل مثلاً دخوراک ،څښاک ، پریوتلو لپاره هم صحیح دی.. (بدائع)

مسئله:که داذان کولو ځای مثلاً مناره ، حجره یامحراب دمسجد ه څنګ کې مقرر دی کوم چې له مسجد څخه دباندې دی ، خو



دهغه دروازه دمسجد له دننه خواده نو ومعتکف مؤذن اونا مؤذن دواړوته هلته داذان لپاره تلل یا په کوم بل غرض تلل ټوله جائز دی. (شامی)

مسئله :داذان کولو ځای مثلاً مناره ، حجره اونور که له مسجد څخه دباندې دی اووهغه ته دتلو دروازه (لاره ) هم له مسجد څخه بهرده نو معتکف مؤذن اونا مؤذن هغه ځای ته یواځې داذان کولو لپاره تلائ شي . له اذان څخه سوا په بل کوم غرض مثلاً ډوډۍ خوړلو، پریوتلو کښینستلواوطبیعت سمولو لپاره دمؤذن اونا مؤذن دواړوداعتکا ف په حالت کې هلته تلل جائز نه دی اود معتکف مؤذن لپاره هم تر اذان کولو وروسته سمدستي بیرته راتلل په کاردی. (شامی)

مسئله : پورته چې ومناري اونوروته دتلو لپاره کومې مسئلې ولیکل شوې په هغو ی کې چې کوم حکم بیان کړل شو هغه دمسنون اوواجب اعتکاف لپاره دی . نفلی اعتکاف کونکی ودغو ځایونو ته هروخت تللا ی شي.(عالمګیری)

## دا عتکاف د طبعی اړتیا مسئلې

دطبعی اړتیا تعریف : داسې شیان دکومو وکولو ته چې انسان مجبور دی اوهغوی په مسجد کې نشي کیدلای وهغوی ته طبعی اړتیا وایې لکه کوچنی بولې ، غټې بولې ، استنجاء ،د جنابت غسل اونور..

مسئله: د طبعي اړتيا لپاره چي كله معتكف دباندې ولاړشي نوتر
خو چي شوني وي په داسې ځاي كي دې خپل ضرورت پوره كړي
كوم چي نژدې وي مثلا دمعتكف كورليرې دې اودكوم اندېوال
كوربې نژدې دې يا په خپله دمعتكف دوه كوره دې يو نژدې اوبل
ليرې يا مسجد ته نژدې حكومتي بيت الخلاء (ټټي اونور) دي
يا له مسجد سره نژدې بيت الخلاء جوړه شوي ده نو په دغو كي
چي هره بيت الخلاء ومسجد ته نژدې وي په هغه كي به اړتيا پوره
كوي. خو كه په نژدې ځاي كي طبيعت نه لګېږي دكوم په وجه چي
اړتيا نه ترسره كيږي .خواكه دطبيعت دتقاضاپه وجه وي يا وبل
چاته تكليف وي ، پرده كول غواړي يا كومه بله ستونزه ده نو
ليرې ځاي ته چيرې چي داستونزه نه وي تګ جائزدى. (شامى)

مسئله: دطبعي اړتيا ترسره كيدو وروسته سمدستي دمعتكف
لپاره مسجد ته راتلل په كاردي بيله كومې وجهي په كوركي پاتي
كيدل جائزنه دي (شامى)

مسئله: كه معكتف ته بادورشي نو كه ممكن وي له مسجد څخه
دې دباندې هوا اوباسي كه بې واكه په مسجد كي ووته نو هم
پروانه لري.معذوردى (امدادالفتاوى)

مسئله: معتكف چي كله د شرعي ياطبعي اړتيا لپاره ولاړشي نو
دخپل عادت سره سم دې تګ كوي . چټک تګ ضروري نه دى
بلكي لږ سپک سوكه تګ كول دده لپاره غوره دي ترڅو په تګ
كي په سلام كولو اوځواب وركولو كي هوسايي وي ، كله داسې



كيږي چي چاته دده اعتكاف معلوم نه وي هغه دې درول غواړي ،
يا په خپله هغه ته ځواب وركول وي نو په داسې صورت كي بيله
دريدو داټول كارونه ترسره كيداى شي ، په چټک تګ كي د
دريدو يا دچا ددرولو انديښنه ده اوكه يوه دقيقه هم ودريږي نو
اعتكاف فاسديږي ځكه نو سپک تګ غوره دى كنه دغسې خو
هرډول تګ جائزدى. (بدائع)

مسئله: داودس كولو يوځاى نژدې اوبل لږ ليرې نو نژدې ځاي
غوره دي. كه كومه ستونزه وي نو ليرې هم تللاى شي ،داغه رنګه
دټټي استنجاء خاني اوغسل خانې حكم دى چي تر څو تر ټولو
نژدې ځاى كي اړتيا ترسره كيږي نو بيله ضرورته دې ليرې نه ځي
(شامى)

## په اعتكاف كي دنا ځا په پيښدونكې اړتيا بيان

دضروري اړتيا تعريف. معتكف ته كه نا ځا په داسې سخته اړتيا
پيښه شي چي له كبله دې واعتكاف پريښودو ته مجبورشي نو
داسې خبروته ضروري اړتيا وايي. (مراقى الفلاح)

مثلا ، مسجد رنګيږي اودمعتكف ترې لاندې كيدو ويره ده يا ظا
لم حاكم دده دبندي كولو لپاره راشي ، يا داسې ګواهي وركول
ضروري شوي وي كومه چي شرعا دمعتكف په ذمه واجب وي چي
دمدعي حق دده پر ګواهي موقوف دى بل كوم ګواه نشته كه
معتكف هم ګواهي ورنكړي نو دمدعي حق ضائع كيږي ، يا كوم
انسان يا ماشوم په اوبو كي ډوبيږي يا په اوركي لويدلى دى يا

دلویدو ویره ده یا سخت ناروغه شوی دی ، یا له کورنی څخه د
وځان مال ، اویت عزت ته خطر دی یا سخت ناروغه شو یا جنازه
راغله اودجنازی لمونځ ورکوونکی څوک نشته یا دجهاد حک
وشو اوپه جهاد کي برخه اخیستل فرض عین شو یا چا په زور
لاس ونیوی ولاړیی کړ ، یا دجمع لمونځ کونکی ټوله ولاړو اوس
په مسجد کي دجمع انتظام نه شو یا ته و دی ډول ټولو اړتیاؤ ن
ضروری اړتیا وی ویل کیږی په زیا تره صورتو کي اعتکاف
پریښودل فرض اوواجبیږی اود اعتکاف پر په ینبودلو ګناه هم ن
وی ، پاتی شوه داعتکاف په پریښودلو داعتکاف فاسدیدل نو
دې حکم په اعتکاف فاسدونکی شیانو کي تیر شو هلته وګوری

## داعتکاف دځاي مسئلې

لاندی لیکل شوی مسئلی یواځی دنرو لپاره دی دمیرمنو چي
کومی ځانګړی مسئلي دی هغه دعلماء څخه وپوښتی.
ومعتکف ته په اعتکاف کي تر کښینستلو مخکې داکتل په کار
دی چي داعتکاف له دریو قسمونو (واجب،مسنون، مستحب)
څخه کوم اعتکاف کول غواړی اوپه کوم مسجد کي چي
کښینستل غواړی هغه په دی مسجد کي صحیح کیږی اوکنه.
مسئله: دمسنون اوواجب اعتکاف لپاره په هغه مسجد کي کیدل
ضروری دی په کوم کي چي پنځه وخته لمونځ دقاعدې سره سم
کیږی.(بدائع)



مسئله : په کوم مسجد کي چي دری یا څلور وخته جمع کیږی د
کوم یوه وخت جمع نه کیږی نو په داسی مسجد کي واجب او
مسنون اعتکاف نه صحیح کیږی. یواځی نفلی اعتکاف کیدلای
شی.(بدائع)
مسئله : ونارینه ته دهرډول اعتکاف کولو لپاره دمسجد کیدل
ضروری دی. که نارینه په کورکي اعتکاف وکړی نو دده اعتکاف
نه صحیح کیږی(بدائع)

## دمعتکف لپاره دمسجد حدود

مسئله: دمسجد بام دمسجد په حکم کي راځی ،ځکه نو معتکف
دمسجد بام ته تلای راتلای شی ،په دی شرط چي دمسجد زینی
په مسجد کي دننه وی که زینی له مسجد څخه دباندی وی نو بیا
پر زینو تلل روانه دی.خو که په اعتکاف کي دکښینستلو پر مهال
دانیت وکړي چي ددغو زینو په وسیله به دمسجد چت ته ځم نو بیا
دمعتکف لپاره ددغو زینو په زریعه دمسجد بام ته ورتلل جائز
دی بیا اعتکاف نه فاسدیږی.( البحرالرائق )
مسئله : دمسجد ټول چاپیر یال عرفا مسجد بلل کیږی ، خو
داعتکاف په بیان کي چي چیری دمسجد ټکی راځی له هغه څخه
مراد هم هغه ځاي وی کوم چي دسجدی لګولو اولمونځ کولو
لپاره ټاکل شوی وی یعنی دمسجد دننی برخه برنډه اوانګړ (
غولی ) په دی داسی هم پوهیدلا ی شی چي په مسجد کي پر کوم
ځای تاسو اودس نه شی کولا ی دجنابت په حالت کي هلته نشی

تللا ي هغه ځای مراددی ،عموما چي تر کوم ځایه دمسجد غولی
بلل کیږی تر هغه ځایه دمسجد حدوددي. (البحرالرائق)

## دمعتکف لپاره د مسجد ودغو ځایونو ته تګ جا ئز نه دی

مسئله: دمسجد له انګړ پرته څومره ځای چي دمسجد نورواړتیا ؤ ته ټاکل شوی وی ،مثلا داودس ځای ،داودس ټانکیانی ، نالیانی ، واودس ته دناستی ځاي ،غسل خاني ،دامام اومؤذن حجره ،دجنازی دلمانځه ځای ،ددالان اونورو اولنئ دروازه یا کومه بله دروازه ترکومه چي له پایزاره سره راځی اوددغو ټولو چتونه کومه خالی ځمکه په همدی ډول هغه ټول ځای کوم چي دمسجد کومی اړتیا اوښیګڼې یا دلمونځ کونکودهوسایي لپاره جوړشوی وی که څه هم دادمسجدپه څلوردیوالی کي دننه وی ، خودمعتکف لپاره دادمسجد په حکم کي نه دی ودی ټولو ځایونو ته دمعتکف تګ جائزنه دی.

مګر داچي داړتیا په وجه شریعت دهلته ورتګ اجازه کړی وی لکه اودس کول ،کوچنی ،غټی بولی کول ،دجنابت دغسل لپاره تلل داټول داړتیا په اندازه جائزدی.(جامع الرموز)

مسئله : دمسجد په غولی کي تالاب جوړشوی وی هلته هم د اودس لپاره خو تلاي شی اما دکوم بل کار مثلا تر ډوډی خوړلو وروسته دلاس پریمنځلو خولي پریمنځلو لپاره تر ډوډی وروسته دلوښی پاکولو لپاره تګ جائز نه دی همدغه حکم دهر اودس ځاي دی. (جامع الرموز)



مسئله:په عیدګاه اودجنازي په ځای کی اعتکاف کول صحیح نه دی. (جامع الرموز)

## ارزښتمن هدا یت

دمعتکف لپاره چي له شرعی اوطبعی اړتیا پرته کومو ځایونو ته تګ جائز نه دی هغه ځایونه څو څو ځله .په پوره فکر سره ولولی ،زیاتره شاغلی معتکفان په بی فهمی یا له مسئلو څخه دناخبرتیا پر بنسټ کله دلاس پریمنځلو ،کله دخولي وینځلو، کله دپوزی پاکولو ،کله دلوښی پریمنځلو اوهمدارنګه دنورو بیلابیلو کارونو لپاره ځی، په کوم چي ددوی اعتکاف فاسدیږی اودوی په دی خبرهم نه وی. په یاد ساتئ چي له شرعي اوطبعی اړتیا سوا پورته بیان شویو ځایو نو ته په تلوکي (که څه هم یوه دقیقه وی) اعتکاف فاسدیږی..

## دمسجد ددیوا لونو حکم

مسئله: دمسجد هغه دیوالونه پرکومو چي دمسجد ودانی ولاړه ده دمسجد په حکم کي وی .څکه نو که په دی دیوال کي کوم محراب. طاخچه ، الماری ، یا دربچی جوړی شوی وی یا سپیکر لګیدلی وی نو ودغو ځایونو ته معتکف تلاي شی. (البحرالرائق)

مسئله: دمسجد کوم دیوال چي جلا جوړشوی وی یا دهغه په اړه شک وی چي معلومه نه ده چي دمسجد بانی داپه مسجد کي شامل کړی دی اوکنه ، یادیوال خونه وی بلکي داسي کوم ځای وی چي دهغه په اړوند شک وی چي معلومه نده چي داپه مسجد

كي شامل دى اوكنه نو ترخو چي تحقيق ونكړى چي دا په مسجد كي شامل دي اوكنه تر هغو هلته تګ جائز نه دى. (امداد الفتاوى)

## دمعتكف لپاره د څو پوړيزه مسجد حكم

مسئله: كوم مسجد چي څو پوړيزه وى نو دهغه په هر پوړ (منزل) كي اعتكاف كيدلاي شى ،اوپه كوم يوه پوړكي داعتكاف كولو په غرض له كښينستلو وروسته دهغه بل پوړ ته هم معتكف تللاي شى ،په دى شرط چې دتګ راتګ زينه په مسجد كي دننه وى ، دمسجد له حدودو دباندى نه وى كه دمسجد له حدودو څخه دوى ځلور زينى هم دباندى وى نو هم جائزنه دى ، هو كه زينه له مسجد څخه دباندى وه اوپور ته تګ ضرورى ؤ نو دهغه يو صورت دادى چي په اعتكاف كي دكښينستلو پر وخت كله چي داعتكاف نيت كوى هغه وخت دى په نيت كي داشرط ولګوى چي زه به پر فلانى زينه پورته ځم نو په دى شرط كولو سره پرزينو پورته تلل روا كيږى ، وهمدى شرط ته استثناء كول هم ويل كيږى. (شامى)

مسئله : دشرعى اړتيا مثلا دجمعى دلمانځه لپاره تلل طبعى اړتيا(كو چنيو اوغټيو بولو اودجنابت غسل كولو ) ته تلل دا په خپله مستثنى كيږى ددوى دمستثنى كولو نيت كول ضرورى نه دى يعنى دااړتيا نشته چي داعتكاف كولو پر وخت په نيت كي دا شرط هم ولګول شى چي زه به دجمعى يا غټو ،وړو بولو لپاره ځم شريعت پخپله ددوى اجازه كړى ده ځكه پخپله مستثنى كيږى.
(شامى اوجامع الرموز)



## ومعتكف ته داحتلا م كيدو حكم

ومعتكف ته كه په شپه كې احتلام وشى نو په دى سره په اعتكاف كي هيڅ فرق نه راځي معتكف ته په كاردى چي دستركو خلاصيدو سره سمدستى تيمم ووهى دتيمم لپاره خو دى يا له مخكى څخه خامه يا پخه خښته كښيښنودل شى كنې دمجبوريت له امله دى دمسجد په غولى يا ديوال تيمم ووهى بيا دى دلمبيدلو بندوبست وكړى .( بدائع ) دغسل انتظام په خپله هم كولا ي شى كه بل كوم څوك كومك وركړى داهم جائزده، مثلا داوبو دلوښى ډكول ،داوبو اچولو لپاره لوټه يا كوم لوښى راوړل كه كوم بل څوك ورته نظم برابروى نو تردومره وخته دى په تيمم سره معتكف په مسجد كي وى ، بيا دى ولمبى جامى دى واغوندى مسجد ته دى راشى.

مسئله :كه په ژمى اويخ كي احتلام وشى اوپه سړو اوبو دتاوان پېښيدو انديښنه وى نو معتكف دى تيمم ووهى په مسجد كي دى وى اوخپل كورنيو ته دى خبروركړى ترڅو اوبه ګرمى شى،كه نژدى كوم ګرم حمام وى نو نژدى حمام ته دلمبولو لپاره راتلا ي شى ، كه كيداى شى نو وحمام والو ته دى دخپل راتګ خبر ور كړى اوتر غسل وروسته دى سمدستى ولاړ شى.(شامى)

## دسړوالى لپاره غسل كول

مسئله: دګرمى په وجه دسړوالى حاصلولو لپاره دغسل لپاره له مسجد څخه بهرته وتل جائزنه دى. (امداد الفتاوى)

که معتکف ولاړی نو اعتکاف یې فاسد یږی.

مسئله :دجمعي دغسل لپاره هم له مسجد څخه دمعتکف وتل جائزنه دی خو که تر جمعه مخکی دشرعي یا طبعی اړتیا مثلا دجمعي لمونځ کولو یا کوچنیو ،غټو بولو کولو لپاره بهرته ولاړی نو په بیرته راتلو کي دجمعي غسل کولای شی تر لمبلو وروسته دی په چټکتیا سره مسجد ته ولاړشي.ولي چي دجمعي غسل سنت اوعبادت دی اوپه داسی صورت کي هر عبادت اداکیدلا ي شی. (امداد الفتاوی )

## دمعتکف داودس کولو حکم

مسئله :ومعتکف ته دهر لمانځه لپاره که فرض وی که واجب که سنت اوکه نفل وی دغه رنګه دقرآن کریم تلاوت یاسجده دتلاوة کول وی یا قضاء لمونځ ادکول وی ددی ټولو لپاره چي هروخت وغواړی داودس لپار ه دباندی تلل جائزدی ولي چي ددی ټولو لپاره اودس کول شرط دی .خو کوم وخت چي اودس کول شرط نه وی بلکي مستحب وی لکه پراودس سربیره اودس کول یاذکر کول وی نو داودس لپاره دی بهرته نه ځی له بهرڅخه هغه ځاي هم مراددی چیری چي په مسجد کي اودس کوی.(البحرالرائق )

مسئله :که دمعتکف بدن یا جامی مرداري شی نو پخپله هم له مسجد څخه دباندی دپریمنځلو لپاره تلای شی ځکه چي له مرداری اومردارشي څخه دمسجد ژغورل واجب دی.(شامی )



مسئله :په مسجد کي داودس اوبه ختمی شوی نو له کوم ځاي څخه چي یې ژر راوړلاي شی هلته دی ولاړشي اوبه راوړلای شی اوکه کورته تګ غواړی نو کورته تلل هم جائزدی بیا که هم هلته اودس وکړی راشي یا مسجد ته راشي پرواله اودس وکړی په مینځ کي دی چیری بیله اړتیا نه دریږی.(جامع الرموز)

## د مسنون اعتکاف دقضاء راوړلو طریقه

پوښتنه: درمضان المبارک په آخرنی عشره کي داعتکاف په حالت کي دجمعي یا سړوالی حاصلولو لپاره دغسل په نیت له مسجد څخه وتل اعتکاف فاسده وی.که پوره کوی ..که جائزاونه فاسدونکی اوله مسجد څخه وتلو موخه چاپیریال دمسجد دي که هغه برخه کومه چي دلمانځه لپاره دمسجد په حکم کي ده.

ځواب : کومه ورځ چي اعتکاف پیل شو دهغه لپاره فاسدونکی دی اودپاته ورځولپاره ختمیدونکی اوپوره کیدونکی ،خو دنذر منلی اعتکاف لپاره دټولو فاسدونکی هم دی اومسجد هغه ځای دی چیری چي لمونځ کیږی نه ټوله ثلوردیوالی.(امدادالفتاوی )

پوښتنه:که دناپوهي په وجه بهرته ولاړی او وی لامبل نو دده اعتکاف صحیح شو اوکنه ؟

ځواب :څومره ورځی چي یې داسی کړی دی دهغو مره ورځو اعتکاف قضاء دی راوړی.

(امدادالفتاوی )

پوښتنه: که یې په یوویشتمه ورځ اعتکاف وکړ وروسته په کوم
وجه اعتکاف فاسد شو نو په دوهمه اودریمه ورځ بیا په اعتکاف
کې شاملېدلای شي اوکنه؟

ځواب: په مسنون اعتکاف کې چې دکومې ورځې اعتکاف فاسد
شوی وی دهغې ورځې قضاء واجبېږي بیا که دروژې دمیاشتې
څو ورځې پاتې وي اودی په هغوی کې ددې دقضاء په نیت
اعتکاف وکړي نو هم صحیح دی یادې تر کوچنې اختر وروسته په
شپږو نفلي روژو کې دیوې ورځې اعتکاف هم وکړي کنه هرکله
چې موقع وی یوه نفلي روژه دې ونیسي دهغې یوې ورځې د
اعتکاف قضاء دې راوړي. (ردالمحتار)

مسئله: دفقهاء کرامو له بیلابیلو عبارتونو څخه معلومېږي چې
که کوم څوک دآخرنۍ عشرې دمسنون اعتکاف په نیت په
اعتکاف کې کښېناستی بیا هغه تردوې، درې ورځې تېرېدو
وروسته دکومې ډېرې سختې مجبورۍ په وجه دانیت کوي چې
دڅن ورځې اعتکاف چې پوره کړم تر لمرلویدو وروسته کورته ځم
، یعنی دراروانې ورځې داعتکاف انکار کوي چې راروانه ورځ زه
اعتکاف نه کوم نو دده مسنون اعتکاف به ختم شي نفلي
اعتکاف به وګرځي، اوپه تلو پرده هیڅ قضاء نه لازمېږي، ولې
چې ترپیل کولو وروسته ده اعتکاف مات نکړ بلکې ختم یې کړ،
که دختمولو نیت یې ونکړ، بلکې دلمر ترلویدلو وروسته
دراروانې ورځې داعتکاف تر پیل کیدو وروسته دهمدغې شپې



یاورځې په مینځ کې ولاړشي نو ددغه ورځې اعتکاف ماتېږي
اوددې یوې ورځې قضاء راوړل لازمېږي. (ردالمحتار)

## دمعتکف لپاره دعمل کولو یوه لنډه طریقه

ومعتکف ته دعمل دلاندې طریقې پابندي کول په کاردي، ولې
چې دخدای ودربارته دهمدې مقصد لپاره ده حاضري راوړې ده
، دده یو یو ګړی ډېر ارزښتمن دی.

(۱) دماښام تر لمانځه وروسته دې لږترلږه شپږ رکعته نفل او
زیات نه زیات شل رکعته داوابین نفل اداکوي بیا دې آیة الکرسی
اوڅلورقله ولولي پرټول بدن دې دم کړي تردې وروسته لږ ډېر
اولږارام وکړي اوبیادې دماخستن ولمانځه ته چمتوشي اود
لومړي صف اوتکبیر اولی پابندي کوي.

(۲) چې دماخوستن لمونځ اوتراویح وکړي دعلم دین دزده کړې
اوپه هغه دعمل کولو په نیت کوم سند درلودونکې اوباوري دیني
کتاب مطالعه کړي یادکوم سنددرلودونکي اوباوري عالم په
درس کې برخه واخلي (که داسې درس کیدی) داغه رنګه دقدر
په شپه تر مطالعه وروسته چې ترڅوتازګي اوتکړه توب وي په
ذکر، تلاوت، اونفلونو، بوخت شي. اوچې کله یې وویدېدوته زړه
وغواړي نو په پوره ډول په سنت طریقه وقبلې ته مخ کړي (که
شوني وو) ویده شي.

(۳) دګرمې په موسم کې دشپې پردرې بجې له خوبه راکښېني له
طبعي ارتیاؤ څخه ترفارغیدو وروسته په سنت طریقه اودس

وکړی،اوتحیة المسجد ،تحیة الوضواوتهجد نفلونه اداکړی داغه رنګه تر نفلووروسته څه وخت په آرامه ذکر اوتسبیحات وکړی، بیاسوکه ښه وژاړی دخپلو ټولو نیکومقصدونو اوددواړو جهانو دکامیابی دعاوی وغواړی.

(۴) دسهار ترسپیدو یو پاؤ کم ساعت مخکی پیشلمی وخوری اوله پیشلمی وروسته دسهار ولمانځه ته چمتو شی، دلومړی صف اوتکبیر اولی خیال وساتی تر څو چې دلمانځه په انتظار کې یاست استغفار وایاست.

(۵)دسهار له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته آیة الکرسی او څلورقله ووایاست پرټول جسم یې دم کړی اودسبحان الله ، الحمد لله ، الله اکبر، استغفر الله اودرود شریف یوه یوه تسبیح ولولی.

(۶) داشراق پروخت لږتر لږه دوه اوزیات نه زیات اته رکعته نفل اداکړی اوبیا ځانو نه هوسا کړی اودڅاښت پروخت تر راویښیدو ورو سته لږتر لږه دوه اوزیات نه زیات دوولس رکعته نفل دڅاښت اداکړی اوځومره چې مو وس وی په صحیح الفا ظو دقرآ ن کریم تلاوت وکړی.

(۷) کله چې زوال یعنی لمر تر سرواوړی نو څلوررکعته نفل د زوال سنت اداکړی اودماپښین دلمانځه په انتظار کې په اول صف کې کښینئ اوتکبیر اولی پابندی کوئ ، اودماپښین تر لمانځه وروسته صلوة التسبیح وکړی . اوتلاوت وکړی ،بیا که دستړیا احساس درته وشو لږویده شی.



(۸) دمازیګر تر لمانځه نیم ساعت مخکی رابیدارشی اودس وکړی دتحیة الوضو اودنفلونو کولو وروسته دماخیګر دلمانځه انتظار وکړی اوتر دی وروسته لنډ تلاوت وکړی بیا تسبیحات وکړی دکومو یادونه چې په ۵ نمبر کې تیره شوه ، بیاپه پوره توجه سره په دعا مشغول شی داډیرارزښتمن وخت دی دادروژه مات په تیارولو مه ضائع کوی.

(۹) کومی خبری چې په اعتکاف کې مکروه اومنع دی له هغوی څخه په بشپړه توګه پرهیز کوی دکومو تفصیل چې داعتکاف په مکروهاتو کې تیرشو ،دوهم ځل بیا په زور فکر هغوی مطالعه کړی.

(۱۰) پرمعتکف لازم دی چې په اول صف کې پخپله راشی کښینی داسی دی نه کوی چې پخپله خو بل ځای وی اودلاس پاک ، څادر اونورو په ایښودلو ځای نیولی وی .اوپه خپل هرکړه وینا ، ناسته ، ولاړه ،اودعمل په ډول دی ونورو معتکفانو اولمونځ کونکیو ته له تکلیف رسولو څخه دځان ساتلو پوره پابندی کوی اودخپلی صفائې دی هم خیال ساتی اودمسجد دپاکوالی دی هم پابندی کوی دخپلوانو اودنورودوستانو دبخښنی اومغفرت دعاء دی هم غواړی ،درحمت په هیله دی وی اوومایوسی ته دی هیڅکله لاره نه ورکوی.(مولانا مفتی عبدالرؤف صاحب سکهروی ماخوذ از البلاغ کراچی رمضان المبارک سنه۱۴۰۸ـه .هج زیاتوب له لوری محمد رفعت قاسمی ددارالعلوم دیوبند مدرس ۲۵ رمضان المبارک سنه ۱۴۰۸هج)

## ځینی ځانګړی اعمال

داعتكاف پر مهال خو انسان ونورو ټولو كارونو ته شاكړى په
مسجدكي ولويږي. ځكه دغه وخت غنيمت بلل په كاردي ،اوداد
بيهوده خبرو ياهو سايي غوښتنى نذر كولو پر ځاي زيات نه زيات
په تلاوت ،عبادت دالله" په ذكر ،تسبيحاتو اواورادو كي
صرفول په كاردي .داعتكاف لپاره كوم ځانګړى نفلي عبادت
نشته ،بلكى كوم وخت چي دكوم عبادت توفيق وشى هغه غنيمت
ګڼل په كاردى،خو ځينى داسى عبادتونه شته چي په عامو حالاتو
كي دهغوى توفيق نه وى اعتكاف ددغو عبادتونود تر سره كولو
لپاره غوره موقع ده ،ځكه دځو داسى اعمالو يادونه دلته كيږي ،
ترخو معتكفينو ته دهوسايي باعث وى.

(احكام اعتكاف ازمولانا محمد تقى عثمانى)

### صلاة التسبيح

صلوة تسبيح دلمانځه يو ځانګړى ډول دى كوم چي نبى عليه
الصلوة والسلام وخپل اكا حضرت عباس رضي الله تعالى عنه ته
ورښودلى وو ،اوفرمايلى ؤ چي په دى ډول لمونځ په ورځ كي يې
يو ځل كوه كه ددى توان نه وى نو هره جمعه يې يو ځل كوه كه ددى
وس هم نه وى نو په مياشت كي يو ځل كوه اوكه ددى طاقت هم نه
وى نو په كال كي يو ځل كوه داغه رنګه ددى لمانځه په فضيلت
بيانولو سره ده مبارك((وفرمايل: چي كه ستاسو ګناهونه دعالج
دريګ په برابروى بياهم ( ددى لمانځه په بركت) الله تعالى



ستاسو مغفرت كوى .(جامع ترمذى) عالج ديوه ځاي نوم دى كوم
چي په سخته ريګنه سيمه كي واقع ؤ ،چيرى چي ريګ ډير زيات
ؤ. (قاموس)

ځكه نو مطلب دادى چي ګناهونه كه هرڅومره زيات وى ددى
لمانځه په بركت دهغوى دمغفرت هيله ده ، ځكه نو ددين بزرګانو
ددى لمانځه خاص پابندى كړى ده.

حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله تعالى عليه 'به هره ورځ
دماپښين پروخت داذان اواقامت په دوران دالمونځ كاوو ،
اوحضرت عبدالعزيز بن ابى داؤد رحمة الله عليه فرمائى چي كوم
څوک جنت ته تلل غواړى هغه دى دصلوة التسبيح اهتمام كوى ،
اوحضرت ابوعثمان حيرى رحمه الله فرمائى چي،له مصيبتونو او
غمونو څخه دخلاصون لپاره ماهيڅ عمل ترصلوة تسبيح زيات نه
دى ليدلى. (معارف السنن ج۴ص۲۸۲)

ځكه نو داعتكاف پرمهال دغه لمونځ ياخو هره ورځ يا چي څومره
ځله مو توفيق وى هرومرو كول په كاردى.

دلمانځه طريقه داده چي څلوررکعتيز نفل دى دصلوة التسبيح په
نيت وكړل شى نور ټوله ركنونه دعامو لمونځو نو په څير دى خو
ددغه لمانځه په هرركعت كي پنځه اويا ځله سبحان الله والحمد
لله ولا اله الا الله والله اكبر دلاندېنى تفصيل سره سم ويل كيږى او
كه‌له دى سره ولاحول ولا قوة الا با الله العلى العظيم )

( دغه زياتوب دمستدرک حاکم لومړی ټوک مخ ۲۱۹ په روايت ثابت دی )که دا هم يوځای کړی نو نور غوره دی.

دشروع کولو طريقه داسی ده:

(۱) نيت وتړی دمعمول سره سم ثناء ، سورة فاتحه اوبل کوم سورت ووایاست کله چي قراء ة پوره کړی نو ورکوع ته ترتلو مخکی په ولاړه ولاړه پورته بيان شوی تسبيح پنځلس ځله و وایاست ،بيا رکوع ته ولاړشي.

(۲) ورکوع ته ترتلو وروسته دمعمول سره سم سبحان ربي العظيم ووایاست بيا لس ځله پورته بيان شوی تسبيح ووايي . تر دی وروسته له رکوع څخه پورته شي.

(۳) له رکوع څخه چي پورته شي لومړی دمعمول سره سم سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد ووایاست بيا په ولاړه ولاړه لس ځله بيان شوی تسبيحات ووایاست بيا سجدی ته ولاړشي.

(۴) په سجده کي لومړی دمعمول سره سم سبحان ربی الاعلی دری ځله ووایاست ،بيا لس ځله دغه تسبيحات ووایاست له دی وروسته له سجدی څخه پورته شي.

(۵)له سجدی څخه چي پورته شي کښيني اوپه ناسته ناسته لس ځله دغه تسبيحات ووایاست بيا دوهمی سجدی ته ولاړشي.

(۶) په سجده کي دې له معمول سره سم دری ځله سبحان ربی الاعلی ووايې بيا لس ځله دغه تسبيحات ووایاست بيا تردی وروسته له سجدي څخه پورته شی دولاړيدو پرځاي بيا کښيني



اولس ځله دغه تسبيحات ووايي ، تردی وروسته ددوهم رکعت لپاره ولاړشي.

په دی ډول په يوه رکعت کي ۷۵ ځله دغه تسبيحات وويل شو ، همدارنګه پاتی دری رکعتونه وکړی .،داسی په څلور و رکعتونو کي ټول دری سوه تسبيحات کيږی ،په دوهم اوڅلورم رکعت کي دغه تسبيحات دالتحيات تر ويلو ورسته ويل کيږی.

دوهمه طريقه داهم جائز اوله حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله څخه ثابت ده چي په پيل کي ترقراءة وروسته ۲۵ ځله دغه تسبيحات ووایاست ، بيا يي ددوهمی سجدی پوری لس لس ځله وایاست اوتر دوهمه سجده وروسته په ناسته نه ويل کيږی ،بلکه سيده ولاړشي.

علامه شامی رحمه الله ليکلی دی چي په دغو دواړو طريقو صلوة التسبيح کول په کاردی کله په اوله طريقه اوکله په دوهمه طريقه.

دتسبيحاتو شمير که په خپله په يادؤ نو پر ګوتو شميرل نه دی په کار،خو که دچا هيريدو نو پر ګوتو شميرل جائزدی ،که په کوم رکن کي تسبيحات ويل هيرشو نو په راتلونکی رکن کي قضاء راوړی، داغه رنګه چي په يوه رکعت کي ۷۵ تسبيحات پوره شی ،خوغوره دادی چي درکوع هيرشوی تسبيحاتو قضاء په قومه کي رانه وړی بلکه په سجده کي قضاء راوړی اودلومړی سجدې هير شوی تسبيحاتو قضاء دسجدو په مينځ جلسه کي مه راوړی بلکه په دوهمه سجده کي راوړی.(شامی لومړی ټوک ص (۴۶۱)

## صلوة الحاجة

چي کله وکوم انسان ته ددنیا اوآخرت کومه اړتیا وړپیښه وي نو نبي ﷺ دحاجت دلمانځه وکولوته هڅونه کړې ده دحاجت د لمانځه بیلا بیلی طریقی له مشائخو څخه نقل شوي دي ،خو دهغه کومه مسنون طریقه چي دحدیثو په روایتو نو کي بیان شوي ده هغه داچي ددوه رکعتیز نفلو دصلوة الحاجة په نیت وتړي ، دلمانځه طریقه دعام نفلي لمونځونو په ډول ده.. هیڅ توپیر نشته .،خو تر لمانځه وروسته الحمدلله ووایه درودشریف ووایه بیا دادعاء ولوله: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِیْمُ الْکَرِیْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ ،اَسْأَ لُکَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِکَ وَعَزَآئِمَ مَغْفِرَتِکَ ،وَالْغَنِیْمَةَ مِنْ کُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ کُلِّ اِثْمٍ لَاتَدَعْ لِیْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَاهَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَاحَاجَةً هِیَ لَکَ رِضًا اِلَّا قَضَیْتَهَا یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ.(جامع ترمذی)

تردې وروسته چي مو کوم حاجت وي پخپله ژبه دهغه دعاوغواړه

(دصلوة حاجة محدثانه تحقيق لپاره وګورى معارف السنن ج۴ص۲۷۵)

داغسي خو دغه ،صلوة الحاجة ، دهرې دنیوي اواخروي اړتیا لپاره کیدلاي شي ،خو که ددې ترکولو وروسته له الله ﷻ څخه دادعاء وغوښتل شي چي ، یا الله ماته اوزما کورنیوته په دین عمل کولواودسنت پیروي کولو توفیق راکړې، زموږ ګناهونه را وبخښې اوجنت مو په برخه کړه آمین.نو انشاالله لویه ګټه به وي.



## ځینې مستحب لمنځونه

ځینې مستحب لمنځونه ډیر فضیلت اوثواب لرونکي دي ، داغسي خو مسلمان ته په کاردي چي ددوی اهتمام وکړي ،خو په ځانګړې توګه داعتکاف پرمهال ددوی پابندي هوسا ده اوکه په اعتکاف کي ددوی پابندي وشي له الله ﷻ څخه دعاوغوښتل شي چي په نورو ورځو کي ددوی تو فیق وشي نو څه لیرې ده؟ چي الله تعالی به دی داعتکاف په برکت ددې ټولو مستحباتو عادي جوړ کړي..

## تحية الوضؤ

ترهراودس وروسته دوه رکعته دتحية الوضوپه توګه کول مستحب دي،په صحیح مسلم کي حدیث دی چي: مامن احد يتوضأ فيحسن الوضوء ويصلي ركعتين يقبل بقلبه ووجهه عليهما الا وجبت له الجنة. (مأخوذ ازشامی)

هرڅوک چي اودس وکړي ،اوپه ښه ډول اودس وکړي ،اودوه رکعته داسي وکړي چي خپل ظاهر اوباطن دلمانځه پر لور متوجه کړې وي نو دهغه لپاره جنت واجبیږي.

داعتکاف پرمهال خو انسان په مسجد کي وي ځکه نو دتحية المسجد کولو موقع نه وي ،خو هر کله چي اودس وکړي ، تحية الوضوء دي کوي نو انشاء الله دډیر غټ فضیلت باعث به وګرځي ،دتحية الوضوکومه ځانګړې طریقه نشته ، دعامو لمونځونو په

ډول داهم كول كيږي ،خو غوره دادى چي دغرمي تر وچيدو مخكي
دالمونځ وكړل شي. (درمختار مع شامي ج۱ص ۵۷۹)

كه په كومه وجه دتحية الوضوء وخت ونه موندل شي نو دمؤ كده
سنتو يا فرض لمانځه دپيل كولو پر وخت په همدغه لمانځه كي
دى دتحية الوضوء نيت هم وكړل شي نو انشاء الله له دغه فضيلت
څخه به نه بې برخې كيږي.(شامي)

په صحيحين كي له حضرت ابو هريرة رضى الله تعالى عنه څخه
روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وحضرت بلال
حبشي رضى الله تعالى عنه ته وفرمايل چي اي بلاله ماته داوښيه
چي تر اسلام قبلولو وروسته ستا هغه كوم عمل دى دكوم په اړه
چي وتاته تر ټولو زياته هيله وى (چي الله تعالى به دهغه په وجه پر
تاورحميږي ) ځكه چي ما په جنت كي وخپل مخته ستادپايزارو
كړپى اوريدلى دى حضرت بلالؓ ) و فرمايل چي ماهيڅ داسي
عمل نه دى كړى دكوم په اړه چي زمازياته هيله وى ( په نسبت
ددى چي ) مادشپى اوورځي چي هروخت اودس كړى دى نو په
هغه اودس مي چي هر څومره توفيق شوى دى لمونځ هرومرو كړى
دى.

(مشكوة ص۱۱۲)

## د اشرا ق لمو نځ

داشراق لمونځ هغه لمونځ دى چي دلمر تر ختلو وروسته كيږي د
اشراق دوه ركعته كيږي ، اوكله چي لمر راوخيږي څه راپورته شي
نو دالمونځ كول كيږي په دى كي افضل دادى چي انسان دسهار



تر لمانځه وروسته پر خپل ځاي ناست په تسبيحاتو يا تلاوت
مشغول وى ، اوكله چي لمر راوخيږي څه راپورته شي نو دوه
ركعته وكړي .له حضرت انس ابن مالك (ؓ) څخه روايت دى
چي رسول اكرمﷺ وفرمايل: چي كوم چا دسهار لمونځ په جمع
وكړ اوبيا دلمر تر ختو ( هلته ) ناست ؤ اودالله ﷻ ) ذكر يي كاوى
، بيا يي دوه ركعتونه (داشراق ) وكړ نوده ته ديوه حج اوعمرى
په خير ثواب ورکول كيږي ،دپوره حج اوعمرى.

(ترمذى ،ترغيب ج۱ص۱۲۴)

اوحضرت سهل بن معاذؓ له خپل پلار څخه روايت كوى چي نبي
عليه الصلوة والسلام وفرمايل چي كوم څوك دسهار لمونځ اداكړي
دخپل لمانځه پر ځاى ناست اوداشراق تر دو ركعتو كولو پورى دخير
پرته له خولي څه نه راوباسي نو دهغه ګناهونه كه څه هم دسمندر
دځګ برابر وى ،ورمعافيږي.(مسند احمد ،ابوداؤد اونورترغيب ج۱ص۱۲۵)

## دڅا ښت لمو نځ

ددى لمانځه هم په حديث كي ډير فضيلت راغلى دى،ددى
مستحب وخت دورځي ديوى څلورمي برخي تر تيريدو وروسته
پيل كيږي يعني دسهار دسپيدو اودلمر دلويدو په مينځ كي چي
څومره ساعته كيږ ى چي هغه پر څلور برخي وويشل شي ديوى
برخي تر تيرولو وروسته دلمر تر زوال مخكي مخكي په هر وخت
كي يې كولاي شي ،مستحب وخت خو همدغه دى،ليكن كه له دى

څخه مخکې مګر دلمر ترختو وروسته چې هر وخت وکړې نو داهم جائزدی. (شامی، کبیری ص۳۷۳)

په حدیث شریف کې یې ډیر فضیلت راغلی دی. لکه چې له حضرت ابودرداء رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی چې:

[من صلی الضحی رکعتین لم یکتب من الغافلین ومن صلی اربعا کتب من العابدین ومن صلی ستا کفی ذلک الیوم ومن صلی ثمانیا کتبه الله من القانتین ومن صلی ثنتی عشرة رکعة بنی الله له بیتا فی الجنة.]

(الترغیب والترهیب ص۲۳۶ج۱ دطبرانی په حواله، ورواته ثقات)

څوک چې دڅاښت دوه رکعته وکړی هغه په غافلو کې نه شمیرل کیږی اوڅوک چې څلوروکړی هغه په عبادت کونکیو کې لیکل کیږی اوڅوک چې شپږ وکړی دهغه لپاره (دغه شپږ رکعتونه) ټوله ورځ (درحمت نازلیدو) لپاره کفایت کوی اوڅوک چې دوولس رکعته وکړی، دهغه لپاره الله تعالی په جنت کې یو کورجوړوی. دابن ماجه اوترمذی په یوه حدیث کې درسول الله ﷺ داارشاد هم نقل شوی دی چې دڅاښت دلمانځه پابندی کونکی ګناهونه که دسمندر دځګ برابروی بیا هم ده بخښنه کیږی

(ترغیب ج۱ص۲۳۵)

## صلوة الاوابین

په عامه توګه صلوة الاوابین وهغونفلوته ویل کیږی کوم چې تر ماښام وروسته کیږی، دالږ ترلږه شپږ اوزیات نه زیات شل رکعته دی، اوغوره دادی چې شپږ رکعته دماښام له دوو مؤکدو سنتو پرته وشی، بیا هم که وخت کم ؤ نو دمؤکد ؤ سنتو سره دی شپږ



رکعته پوره کړل شی بیا هم انشاء الله ددی لمانځه فضیلت حاصلیږی، په حدیث شریف کې ددی لمانځه لوی فضیلت راغلی دی له حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبی علیه الصلوة والسلام ارشادوفرمایي:

کوم څوک چې تر ماښام وروسته شپږ رکعته په دی ډول اداکړی چې دهغوئ په مینځ کې کومه ناوړه خبره تر خوله نه راوباسی نو داشپږ رکعته دده لپاره ددوولسو کلونو دعبادت په برابر شمیرل کیږی..

اوله حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت دی: چاچې تر ماښام وروسته شل رکعته وکړل، الله تعالی دهغه لپاره په جنت کې یو کور جوړوی دامت علماء اوددین بزرګانو ددی ډیر اهتمام فرمایلی دی، الله تعالی دی مونږ ټولو ته هم ددی توفیق راکړی. آمین.

داعتکاف پر مهال په ځانګړی توګه دتهجد خیال کول په کاردی، دغه وخت دالله تعالی دخاص رحمتونو دنزول وی، له دی څخه زیات نه زیات دګټې اخیستو هڅې کوی. یادونه دی وی چې د تهجد لمونځ دسهار ترسپیدو مخکې مخکې ختمول په کاردی: ولې چې دسهار تر سپیدو وروسته دسهار له سنتو سوا کوم نور نفل کول جائز نه دی، خو که دسهار تر سپیدو مخکې دلمانځه نیت تړل شوی وی اودلمانځه په مینځ کې دسهار سپیدی را وخیږی نو دوه رکعتونه پوره کول په کار دی. (شامی ج۱ص۴۷۲)

(ددعا غوښتونکی محمد رفعت قاسمی ددارالعلوم دیوبند دروس خادم ۱۵ ربیع الثانی ۱۴۱۵هج)

**بسم الله الرحمن الرحيم**

ددارالعلوم ديوبند استاد حضرت مولانا مفتي سعيداحمد صاحب مدظله پالن پوري رأيه:
مکمله اومدلل داعتکاف دمسئلو درسالې ليکونکي مولانا محمد رفعت صاحب قاسمي زيدمجدهم داحقر په وړاندې ده ، درسالې موضوع له نامه ښکاره ده ،درمضان المبارک دمياشتې اوخصوصا دهغې دآخري عشرې له ځانګړو اعمالو څخه يو عمل اعتکاف هم دی ،داعتکاف حقيقت دادی چې وهرلورته شاکړي يواځې والله پاک ته ورنژدې شي دهغه پردريعنې دمسجد په کوم کونج کې ولوېږي اوهروخت په عبادت ذکر اوفکر بوخت شي.
ښکاره خبره ده چې تردې زيات دکوم بنده نيکمرغي بله څه کيدلای شي چې هغه دټولو ته شاه کړي اوله ټولو ليرې شي دخپل مالک اوموﻻ پر چوکاټ اوګويا دهغه په پښو کې پريوزي ،هروخت هغه يادوي دهغه په حضورکې توبه اواستغفارکوي پر خپلو ګناهو نو اوکميو ژاړي اوله رحيم اوکريم څښتن څخه رحمت اومغفرت غواړي دهغه رضا اودهغه نژدې والی غواړي. ،په همدغه حال کې دده ورځې تيريږي اوپه دغه حال کې دی شپې سباکوي. (ما خوذ ازمعارف الحديث ج۴ص۱۱۸)
له دې پرته داعتکاف نوري هم ګڼ شمير ګټې دي مثلا (۱) له خلکوسره په ناسته پاسته اودکاروبار په بوختيا وو کې له انسان څخه غتې کوچنی ډيرې ګناهوې کيږي معتکف له هغوی څخه په



حفاظت شي لکه چې په حديث شريف کې دي هو يعکف الذنوب اعتکاف کونکی له ګناهونو په حفاظت وي..
(۲) اعتکاف کونکی خپل کور پريږدي دخدای(ﷻ) کورته راشي اوپريوزي، ګواکې په دې دنيا کې چې والله تعالی ته څومره ورنژدې کيدل شوني وي هغومره نژدې کيږي ، اوپه حديث قدسي کې دالله تعالی ارشاددی چې :کوم څوک چې يولاس ماته رانژدې کيږي زه هغه ته دوه لاسه ورنژدې کيږم اوڅوک چې زما پرلورتګ کوي راځي زه دهغه پرلور په منډه ورځم اوس تاسو اندازه وکړي چې و معتکف ته به الله تعالی څومره نژدې وي اوڅومره به پرده مهربان وي.
(۳) داعتکاف په حالت کې هره شيبه دعبادت ثواب ورکول کيږي که څه هم معتکف پټه خوله وي ،ويده وي ياپه کوم بل کار مصروف وي.
(۴) کله چې داعتکاف کونکی هره ساه په عبادت کيده نو دقدر دشپې دلاس ته کولو هم له دې څخه غوره کومه بله طريقه نشي کيدلای ،ولې چې هر کله چې دقدر شپه راځي هغه به په هرحال کې په عبادت کې وي.
خودايو حقيقت دی چې دهر عبادت ثواب هغه وخت ورکول کيږي کله چې هغه والله " ته قبول شي ،اودالله ﷻ دقبلولو اسباب په ظاهره دهغه عبادت دشريعت دښودنی سره سم کيدل ضروري دي.

دارساله محترم مولانا محمد رفعت صاحب قاسمی په همدی غرض ليکلی ده چي معتکفان خپل اعتکافونه له شريعت سره د سم جوړلو لپاره له دی شخه لاربنودنه ولاس ته کړی.

دعاکوم چي الله تعالی دليکونکی دام مجده دغه نيک خواهش په ښه ډول پوره کړي اوامت ته له دغي رسالي شخه دزيات نه زياتی گټی پورته کولو توفيق ورکړی. (آمين يارب العالمين)

(سعيد احمد پالنپوری عفا الله عنه)

ددارالعلوم ديوبند خادم

۱۵ذی الحجه سنـ۱۴۰۸ــه هج

ستاسودينی وورنور القرآن اداري خادم

«ابوخالدمولوي عبدالاحد «مجروح»